# غرنی سندری

لیکوال:

څیړنمل محمد عارف غروال

١٣٦٠

# غزنی سندری

## (دپکتیاځینی اولسی سندری)

لیکوال


## څیړنمل محمدعارف غروال



خپرونکی

## دافغانستان دعلومو اکاډیمی

دژبو او ادبیاتو انستیتوت

## پښتوټولنه





دچاپ شمیر : ۵۰۰

د چاپ ځای : دولتی مطبعه

دپښتی انځور : د محمد روحانی رویا

۱۳۶۰

# فهرست



« لومړی »

# مننه او یادونه

دغږنۍ سندرې د کتاب دچاپ دچارو په بیلا بیلو برخو کې دغولاندې ښاغلو برخه اخیستې ده :

۱ـ عبدالصمد امیری دمانوتایپ دڅانګې آمر

۲ـ عبدالحکیم دمانوتایپ دڅانګې سرمرتب

۳ـ عبدالسالم «آخندزاده» د مانوتایپ د څانګې مرتب

۴ـ اسدالله عزیزی د مانوتایپ د څانګې مرتب

۵ـ محمد کریم افضل زاده دمانوتایپ دڅانګې مرتب

۶ـ ګلزار «خدنګ» د مانوتایپ د څانګې مرتب

۷ ـ امرالدین د مانوتایپ د څانګې مرتب

۸ـ عبدالقیوم ( رحیمی ) دمانوتایپ د کیبورد آپریټر

۹ـ عبدالرحمن دمانوتایپ د کیبور دآپریټر

۱۰ـ پیرمحمد مرزازاده دماشینونوباشی

۱۱ـ عبدالرحیم دصحافی دڅانګې مدیر

۱۲ ـ نصرالله دصحافی دڅانګې کارګر

ددوی له هرستی او هڅې مننه کوو .

دا یادونه هم ضرورده ، چې که چېرې طباعتی تېروتنې په کتاب کې پاتې وي محترم لوستونکی به یې د مهربانۍ له مخې سمې کړي اوموږ به و بخښې .

« دوهم »

# د څېړندوی روهي نظریه

د ژبو او ادبیاتو د انستیتوت محترم رئیس!

د (غزني سندرې) په نامه د څېړنمل محمد عارف غروال اثر مې وکوت. څرنګه چې دغه اثر د پکتیا د اولسي ادب څېنو اړخونو ته وقف شوی دی ښه به وي چې نوم یې (د پکتیا اولسي ادب) یا په دقیق ډول سره (د پکتیا د اولسي ادب څېنې اړخونه) کېښودل شي څو لوستونکي د عنوان له مخې د کتاب د محتویاتو په باب بشپړ معلومات پیدا کړي. د کتاب سریزه لنډه ده خو څرنګه چې ښاغلي رفیع او څېړنیار هیوادمل هم سریزې ورباندې لیکلې دي، نو همدا لنډه مقدمه کفایت کوي او تر دې زیات څه لیکل به لوستونکي له خپل اصلي مطلوب څخه لرې کړي.

ددې اثر اهمیت څرگندېږي. دافغاني تولنې دفولکلوري آثار و ثبتول او خپرول یو مسلې فریضه او د افغاني تاریخ ، تولنپوهنې او انتروپالوجې په لاره کې ستر خدمت دی . خیرنمل غرو ال دخپلې موضوع له تولو جزئیاتو او دقایقو سره پوره اشنا دی او یوه ښکلې او خوندوره مجموعه یې را تولهکړې ده .
دااثر نه یوازې دنسلکی خیړونکو دپاره غنی مواد وړاندې کوي، بلکه دادب دمینانو ادبی تنده هم ماتوي او په زړه پوري ذوقي اړخ هم لري .
پهداسې حال کې چې ددغه اثر دچاپولو پرخوایم لهمحترم مولف څخه یوه غوښتنه هم لرم چې دنامأنوسو لغتونو تلفظ او معنی دی هم دکتاب پهآخر کې راوړي . کهدموسیقی نوټیشن یالحیني سیمهایز عکسونه پکښې راشي لا بهښهوي .
بریالی او سیء
څیړندوی محمدصدیق روهی

# دځیړنو الځدران نظر یه

دژ بو او ادبیاتو دانستیتوت محترم رئیس صاحب !

د(غر نی سندری) په نامه دښاغلي عارف غر و ال اثر مې و کوت.

محترم ملیکو ال په خپل دغه اثر کې د پکتیاداو لسی له ادب پر اخ ډګر نه په زړه پو رې ګلو نه راټول کړی او یوه په زړه پو رې غنچه یې تری جوړه کړې ده .

ددغه اثر لو ستل سړی د پکتیادفو لکلو ر دیوی ناخر ګندی بر خې سره آشنا کوی او فو لکلو ر ستانو ته په زړه پو رې مو ادو ر کوی. زه ددغه اثر دچاپ سره مو افقه لرم او په دغه بر خه کې یې دنو رو مو ادو راټو لو بر یالیتوب غو اړم.

# د هیواد سل نظریه

د ژبو او ادبیاتو د انستیتوت محترم رئیس صاحب !

د «غزنی سندری» په نامه رساله چې ماته د نظر له پاره راکړل شوې ده، نوموړې رساله ما وکتله، د دې رسالې ټول راټول شوي مواد د پښتنې فولکلور ځینې نابشپړ څنګونه ښيي او چا چې له هره پلوه مهم او زموږ د کلتور په ځلا او ښکلا کې اغیزمن دی .

زه دلته نورې ډېرې خبرې نه لیکم ځکه د دې کتاب د محتویاتو په باب بشپړې څېړنې شوې، چې د مقدمې په توګه به ورسره چاپ شي .

# د لوی او سرستندوی خدای په نامه

اولسي ادب داولس د هنري استعداد ښکلې او ارځښتناکه شتمني او داولس داجتماعي ژوند ژوندي ښکارندوی دی، دا ادب همڅکه داولسونو دنورو ایجا داتو غوندې د ارتیا له مخې را منځ ته کیږي او د دوی له ژوند سره اوږه په اوږه رارروان وي ، ددوی دژوندخوږي او ترخې،لوړې او ژورې ښې او بدې په خپله سینه کې خوندي کوي،دوی یې د خپلو خوښیو ،خوشالیو اوساتیریو پهوختو کې د مستوسندرو په توگه وایي او دخپلې خوښۍ اظهار پرې کوي او دخپلو غمونو ، خپگانونو او ماتمونو په دوران کې بیا دزړه غوځو نکوساندو پهتوگه خپل دروند غم پرې ښکاره کوي. همدا راز دوی په اولسی ادب کې خپل طرز تفکر ،خپل نړی لید، خپل عقاید ،خپلې تجربې او د خپل چاپیریال ورځنی او تاریخې پېښی دیوه ارځښتناك میراث په توگه رانغاړي او خپلو راتلونکو ته یې خوله پهخوله پرېږدي.

اولسيادب له لوړې سره پهدو ولو یو برخو وېشل کیږي چې لوړې برخه یې هغه شتمني دهچې لهعادی خوسپېڅلو اولسی خبرو څخه جوړه شوې چېموږ یې د منثورادب په نامه پېژنو او د وهمه برخه یې هغه سندرې دي چې داولسیخلکو ادبي تنده ماتوی چې دوی د کاراو زیاراو فارغ وخت د

ښه تېر بدلو له پاره کار ترې اخلي او موږ د منظوم ادب نوم ور ته اخلو.

پښتانه چې له زړ گونو کلونو راهیسی د «روه» په غېږه کی مېشت دی، د آریایی تمدن په تاریخی زانگو کې یې سترگی غړ ولې او درانه ځایي کلتور درلودونکی دی، داولسی ادب پراخه او ارته بېرته لمن لري او داسې ادبي پانگه پکې خوندی ده چې د دوی د ژوند هر خه یې ورسره خوندی ساتلی دی له همدی کبله یو پښتون محقق نظر ښکاره کوي چې:

« دپښتو عوامی ادب ژوندی او فعال دی، داپه هر دور کښې د پښتون اولس دفطرت ترجمان دی، ځکه په خپله د هېرېدو یا ورکېدو ویره خو یو پلو چې پښتو ژبه او پښتون اولس یې هم دهېرېدو او ورکېدو د خطری نه په امان کړی دی. حقه خو داده چې په اصل کی دپښتو عوامی ادب د دې ژبې دژوند ساتونکی او ضامن دی.» (۱).

هو! دپښتو د اولسی ادب بید یانی گلونه چې هم ښکلا لري او هم ځلاد زرگونو کلونو په اوږدو کې د «روه» په غرونو او رغونو کې غوړېږی له یوی سیمی نه یې بلې سیمې ته وږم خورېږي، لاس په لاس گرځي، داگلونه هم دناوی دولی ښکلی کوي او هم دمړی په جنازه عطر و نه شیندی، مطلب دا چې اولسی ادب ددوی د ژوند مل او د دوی دژوند چار و انځور گر او ښکاره کوونکی دی.

د اسمه ده چې اولسی او کلیوال ادب د بشری ټولنو دادبی تخلیقا تو لومړنی نښې او ابتدايي تجربې دي خو دا هم باید په پام کښې ولرو چې دا

---

(۱) طائر، پروفیسو ر محمد نواز، روهی ادب، لومړی توک، پښتو اکیډمی — پېښور، ۱۹۷۸ع ۵۷ مخ.

ادب دبشپړ شوي ادب لو سر نی خبتې او د بنسټ تېرې هم دي . خصوصاً پښتو اولسی‌ادب کهله‌یوی خوا لرغونی او زوړ دی او زمو ږ ادب رانبلوی له‌بلې خوا په خپله هم ژوندی او خوځند ادب دی ، دژوند له بهیر سره گړندی ځی‌او په ډېر قدرت او متانت خپل موجودیت‌ساتی او دخپل اعجاز او ایجازله امله‌دپښتو ادب دو یاړ شمله دتل له‌پاره‌لوړه‌وی. په پښتوادب کې‌لکه تر اوسه چې‌هم یوه لنډۍ لنډۍ کوم‌اغیز لرلای‌شي هغه دیوې او ږدي بوللی (قصیدې) په‌تو ان کې نشته :

ببلتو نه راشه سترگی‌مه شې

زړه‌سې پښتون دی‌سپلمه‌نه خپه کوینه

پو رتنۍ لنډۍ د کمیت له‌مخې ډېره‌لنډه‌ده خو د کیفیت‌له پلوه دپښتو نولی دفلسفې یو سهم اړخ په‌ډېر لوړ بلاغت بیانوی چې دا کار په لیکني ( تحریری ) ادب کې‌په‌داسې اعجاز او ایجاز بې ستو نزونه دی .

په هر حال زه دلته د پښتو اولسی ادب په باب له هر اړخیزی څېړ نې څخه تېر یږم او یو ازې غواړم چې دا « غرنی سندرې » و څېړ و خو مخکې تر دې چې د کتاب په موضوعاتو و غږ یږ و د کتاب دمقدمې په‌توگه‌یو بل‌سهم بحث چې‌دپښتو داو لسی‌ادب‌دقدامت ښکار ندو یي کوي هم‌لاز م بو لم او د امو ضوع دادب څېړ و نکو داو ږدو او ژ ر و څېړ نو له‌پاره راسپړ م.

[ ۱ ]

**د اولسی ادب لرغونتوب**

دپښتو اولسی ادب له‌دې کبله چې خو له‌په خو له او سینه په سینه له‌یوه نسل نه‌بل‌نسل‌او له‌یوی پېړۍ نه‌بلې پېړۍ ته‌لېږ دي‌نو په‌دې‌یون کې د نو یو

زیږیدنو تر څنګ ضایعات هم و رکوي چې د ضایعاتو زیاته برخه یې هم هغه نمونې دي چې تاریخي نثر پې له ځانه سره اری ځکه داولسي ادب د تاریخي نثرو درلو دونکې نمونې معمولاً د تاریخي کسانو، ځایونو او د مهمو تاریخي پېښو نثرې لري چې معمولاً نو مونه یې د ژر ژر هیریدو او یا هم د وخت په تیریدو بدلیدو او کله ــ کله داد کسانو او ځایونو نومونه او مهمې پېښې محلي رنګ اخلي او خپل تاریخي ځای محلي کسانو، ځایونو او پېښو ته پریږدي:

مثلاً د ښادي او و اده سندرې چې معمولاً دواده سره د مربوطو کسانو او مربوطو ځایونو نومونه پکې راځي کله چې په بل واده کې و یلې کیږي نو هلته دا ټول نومونه د همدې واده د مربوطو کسانو په نومونو اوړي او په همدې ترتیب د هر واده په وخت کې په سندرو کې دا نومونه اوړي راوړي، همدا راز په هسانډو کې هم دیوه او بل سړي په وخت کې نومونه او ځایونه اوړي په همدې ترتیب داولسي ادب په ځینو نمونو کې چې کومې تاریخي خبرې او ځایونه یادشوي، ورو ــ ورو هېر یږي او نوم یې دوخت معاصري خبرې او اتلان نیسي او له دوی سره د مربوطو ځایونو نومونه پکې ننوزي. له دې ټولو پېښو سره ــ سره بیا هم داولسي ادب په ځینو نمونو کې زړې تاریخي پېښې او نثرې لا اوس هم په همیشني توګه پاتې دي چې له موږ سره داولسي ادب د لرغونتوب په څیر نه کې مرسته کولای شي، په دې سربیره داولسي ادب په نمونو کې ځینې نورې نثرې هم موږ ته ددې ادب د لرغونتوب په لو رلارښوونه کوي او موږ کولای شو چې د اولسي ادب قدامت له دې دریو لارو څخه اټکل کړو:

۱ ــ تاریخي پېښې.

۲ ــ زړې نثرې.

۲— لرغوني جوړښت.

چې دلته بېلابېل بحث پرې کوو:

## ۱ـ تاریخي پېښې:

پهدې برخه کې داولسي ادب هغه نمونې ترڅېړنې لاندې نیولې کېږي چې نېغ پهنېغه یوې تاریخي پېښې ته نغوته پکې شوېوي او یا داسې تاریخي کسان اوځایونه پکې یادشوي وي چې دهغو هویت پهتاریخ کې څرګند او لهیوه تاکلي زماني وخت سره اړه لري، داولسي ادب د دې ډول نمونو تر لاسهکېدل سړي ته لارښوونه کوي چې داولسيادب دانمونه دوسره سوهیا دوسره زره کاله پخوا جوړه شوې ده، خوداحکم هغهوخت کېدایشي چېسړی دنورو اسنادوپهبنسټ خپله خبره ټينګه کړي او لهپوره دقت څخه کار واخلي.

له پېړیو—پېړیو راهیسې دالنډۍ خوله پهخوله راپاتې وه:

چې د خدا نولښکرې راشي

زهبه ګومل تهداشنا دیدن تهځمه

خوداچاته معلومهنهوهچېدالنډۍ څهوختویله شوېاودا کومې پېښې تهاشاره کوي؟ خوپوهاندحبیبي دتاریخي پېښوپهرڼا کېدديلنډۍعمرپهدې ډول اټکلوي: «داستانعزیمتافغانها راباسبکتګین و سلطان محمود،مؤرخ آنعصر ابو نصر محمد بنعبدالجبار العتبيدر حدود(۴۱۰ھ)چنین نګاشته کهپښتونها مانند اجل یابمثل شیران ګرسنه بر دشمن مې تاختند، کوتل هار اسې نور دیدند،مانندبرق در جنګلها مې آمدند،وهمچون آهو بر کوهها بر آمدندو مانند سیل در درهها و نشیب ها مې افتادند، ودراوقات وقوع مهمات بسا سبکتګین همراهي داشتند (تاریخ یمیني).

درمورخین مابعد نعمت‌الله و خانجهانخان این داستانرا تازگی بخشیده و می‌نویسد : بعدازان درسنه ... حق تعالی سلطان محمود غازی را بسلطنت معززساخت ، و دیار عراق و خراسان وماوراء النهر تاحد ودریای سند بحوزهٔ تصرف او درآمد ، نه‌کس از رؤسای افغان که اسامی شان در کتب تواریخ باین وجه مسطور است ، چنانچه «ملک‌خانو »ملک عامون، ملک‌داؤد ملک یحیی،ملک‌احمد،ملک‌محمود،ملک‌عارف،ملک‌غازی بملازمت سلطان محمود غازی آمده بشرف ملازمت مشرف شدند ، ... واین جماعه را بخدمت خودگرفته و بعزیمت انهدام سومنات هندوستان توجه فرمود ... درین سفر هرجا کاری مهم صعب روی میداد،این جماعهٔ افغانرا تعیین مینمود(مخزن افغانی) .

این روایات که‌بسال (۴۱۶هـ ) درواقعهٔ سومنات مرافقت افغانهارا به سلطان محمود میرساند ، باروایات محلی وخصوصی افغانی نیز تائید میشود مثلاً مخزن افغانی یکی ازجنرال های افغانی سلطان محمود راملک خانو مینویسد چون رفت وآمد عساکر شاهنشاهی ازغزنی بهند زیاده تراز معبر گومل می‌بود ،بنابران دریکی ازلندی های ملی که‌محبوب یکی ازدلباختگان افغانی درلشکر ملک خانوی مذکور بهند رفته، محبوبه بااشتیاق وولع درهٔ گومل رفتن خودرا برای دیدار یارچنین سروده است:

چې د خانو لښکرې راسي

زه‌به‌گومل ته دخپل یاردیدن له‌ځمه

مؤرخین متأخرچون شیرمحمد خان درخورشید جهان ، وسعادت خان نوترین درخصائل السعادت ودیگران نیزملک‌خانورایکی ازخوانین بزرگ محمود نوشته اند ، ازین تطبیق ظاهر میشود که اشعارملی ما به

قدیمترین زبانها تعلق میگیرد، که درین چند سطر بطور نمونه به آن اشارت رفت.»(۱).
زموږ د اولسي ادب په خپنو ډولونو کې تاریخي پېښې په زیاته پیمانه رانغښتې شوې دي چې سړی ژورو تاریخي څېړنو ته وربولي د نمونې په توګه زموږ ملي نکلونه لکه پتې خان رابیا، تور دلي شاهو، آدم خان درخانۍ او نور تول په خپلو غېږه کې تاریخي پېښې لري چې د څېړنو په رڼا کې د تاریخ له پاڼو سره تطبیقېدلای شي. مثلاً پتې خان رابیا کیسه دامې وخت تېره شوې ده چې د بست ښاروداڼ او د لرغوني کندهار دوا کمنې مرکزو. تاریخ ښيي چې دا ښار ترا سلام وړاندې ودان شوی چې د انوشیروان ساساني په لاس کې وا او بیا وروسته د غزنوي دورې ودانې علاءالدین غوري (د. ۵۵۰ هق حدود) د انتقام په لمبو کې وسوی او ګوډ تیمور هم په خپل وار دې تاریخي ښار یوه برخه ورانه کړه خو بیا هم (۹۰۰ هق) په حدودو کې ودان واوروستنی کلابې د (۱۱۵۰ هق) کال په حدودو کې نادر افشار نړولې ده(۲).
په کیسه کې د ا ښار د اسلم خان پاچا د پلا زمینې (پایتخت) په توګه یاد شوی چې

---

(۱) حبیبي استاد عبدالحی، «تاریخچه سبکهای اشعار پښتو» کابل کالنۍ ۱۳۱۹ کال ۱۹۰-۱۹۱ مخونه. دابحث اروا ښاد محمد ګل نوري هم په یاده شوې کالنۍ کې د لنډې په مقاله کې ځبرګ کړی (د کالنۍ ۳۰۷ مخ) متاسفانه د لیکوال« د خلکو سندرې» په کتاب کې (د ۱۳۴۹ کال چاپ) د «خانو» نوم سهوا» خالـو» چاپ شوی (۱۰۴ مخ) چې په دې وسیله سمیږي. د مخزن په چاپي نسخه کې د انوم ملک خانوي ضبط شوی او د نسخو په توپیر کې یې ملک خالوي ملک خاتون هم شته (تاریخ خانجهاني و مخزن افغاني د خواجه نعمت الله تالیف د سید امام الدین تصحیح او مقابله ایشیا ټک سوسایتي ډاکه. ۱۹۶۰ ع لومړی ټوک ۱۱۷ مخ.)(۲) حبیبي عبدالحی، پښتانه شعراء ۱/۹۶-۹۷ مخونه کابل ۱۳۲۰ ش.

پتې خان د ده زوی دی، د کلابسدو داني او منظومدرو از و یادو نه د پتې خان د سور په دي ناره کې شوې:

که دوې دي کلابسدرو ازې دوې دي

پر بوه پتې خان و زې پر دا بله بې د سور سوی نارې دي

پر کندهار باندې د اسلم خان پاچاو اکټ درلودل د پتې خان له دې نارې ښخه چې د ښي په سوسم کې د هند په گرمیو کې د کندهار انارو ر یاد شوی ښرگندېږي :

که پاخه دي کندهار انار پاخه دي اسلم خان بابادې خوري پرما ترخه دي

اسلم خان په کیسه کې د پاچا په نامه یادشوی او هم بې د یوې نارې له مخې پاچا بی تخت درلود او کله چې پتې خان د سورتیا په حال کې هندته ځي نو ځپل سرورتوب علت داسې ښیي:

ماسلام و ای سلام درو اچاو مر ابیادې نه کیء

چې پرتخت و ای پر تخت درو ختم ځای دې رانه کیء

د کرمي بوه ناره ښیي چې دوی داسې وخت هندته روان دي چې د هند اداره د پښتنو پاچاهانو له لاسه و تلې او د وی پېرته هلته د پښتنوو اکمنی تینگول غواړي :

سر د سره پالنگه لوړ کړه پتې خانه باغي شوي هند و ستان رعیت سلکونه

د کیسي په یوه بله ناره کې د هند د یوه واکمن یاحکمران نوم «شمس الدین» اخیستل شوی او کرمي وایي:

دا کاروان د شمس الدین ـ شمس الدین په طلا بار دی

دغه تول د پریخانو ـ پریخانو کوکی ښکار دی

په کیسه کې نور هم ځای په ځای نومونه ،ځایونه او پېښې یادشوي چې دلته بې را اوړل او پردېږي(۱).

---

(۱) د بشپړې کیسي له پاره و گوریء: سلی هنداره، محمد گل نوری، لوېړی توک، د پښتو ټولنې چاپ، ۵-۱۳ مخونه. پورتني نارې د پښتانه شعراء(لوېړی توک) له ضبط سره سمې را اخیستلي شوې دي.

که څه هم يو نظر دادی چې دا کيسه دې له قبل الاسلام سره تړلې وي څکه ولبرانې ليکلي چې په ريگو بدا کې راغلی دی چې پښو ا په اراکوز یا (کندهار) کې ديوی قبيلې پاچا«واسو ديوا» نوميده، ددې پاچازوی سوداس پر هند حمله وکړه او ډېر فتوحات يې په برخه شول (۱) خو که دانظر و منو نو بيا بايد و وايو چې د کيسې ټول نومونه داسلامي دورې له غوښتنو سره اړول شوی امادا نظر بل تائيد او ټينگ ملاتړ نه لري .

سوړ د کيسې ديادو شو و تاريخي ټکو او پېښو په رڼا کې ددې او لسې کيسې دوخت په باب داسې و يلای شو :

د کيسې د تير بدلو په وخت کې کلابسودان و ، داسلم خان ترواکمنی لاندی محلي پاچايی پکې جوړه وه، دده زوی له خپله پلاره سرورشوی او په نتيجه کې له خپلو سلگرو سره د هندد «بيافتح کولو » له پاره هغې خواته ولاړه هلته دمغولو پاچايی وه او د هند پاچايادهغې سيمې حکمران چې دوی جگړه ورسره درلوده شمس الدين نوميده چې دوی هلته دبی ساری سپړانسې کارنامې ترسره کړي دي او ټول د ننگ په جنگ کې شهيدان شول.

سوړ په خپل ليکلي تاريخ کې داسلم خان په نامه کوم پاچانه پيژنو خودا دتعجب وړ څکه نه ده چې زموږ ډېرې تاريخي څيرې تاريخ نه دی خوندی کړې ، دنمونې په توگه و اړه کوشانيان چې افغانستان ته داسلام دراتگ په وخت کې يې په کابل ، زابل او دهيواد په نورو برخو کې واکمنی درلودی ډېر کم يې دسکو او څينی نورو نښو له مخې پيژنو چې ډېر يې لا تر اوسه هم هېر دي او هم په اسلامی دوره کې د هيواد د جغر افيايی ستونزو له امله د افغانستان په بېلابېلو برخو کې وړې- وړې و اکمنی

(۱) پښتانه شعراء لومړی ټوک ، ۹۹ مخ .

سو جودې وې چې په تاریخ کې لېږې یادېږي .تاریخي خبرې د کلابس د ښاروداني د ۰۰۹ هق ترشااوخوا پورې ثابتوي او هم همداوخت د بابر کورنۍ په هند کې مغولي سلطنت جوړ کړی او د هند افغاني واکمني د دشیر شاه سوري له کورنۍ څخه لېرد پدلې وه ، داهغه وخت دی چې پښتانه تول ببرته هغه کوي چې په هند کې افغاني واکمني بیا ټینګه کړي ، د بایزید روښان (۹۳۱-۹۸۰ هق) او دده د کورنۍ مبارزې هم په همدې اراده ولاړې دي اوهم د «شمس‌الدین اتکه» په نامه داوخت یو تن د جلال‌الدین اکبر له خوا د هند دحصار په حکومت گومارل شوی چې سندرسرې ؤ اواکبر دخان اعظم خطاب ور کړی ؤ، چې داتولې پیښې د ۹۰۰-۱۰۰۰ کلو په منځ کې پیښې شوې دي.

د تاریخ ددې نچوړ په نتیجه کې مو ړو یلای شو چې داکیسه همداوخت پېښه شوې چې پښتنو دهند واکمني له لاسه ور کړې وه او ددې واکمنۍ دبیا ژوندي کولو له پاره هر اړخیزې هڅې روانې وې او د پتې خان هڅه هم ددې لړۍ یوه کړۍ ده، د پتې خان او دده دملګرو جګړه چې له ګوریلایې حملو نه پیل شوې وه بنایي له همدې شمس‌الدین نومي حکمران سره پېښه شوې وي او په نتیجه کې ددې تاریخي خبرو په سرسته اټکل کوو چې د پښتو د اولسي ادب د پتې خان کیسه همداوخت رانبلبدلې او د دې کیسې خوږې نارې چې زموږ د اولسي ادب غوره نمونې دي په همدې وخت کې جوړې شوې دي.

څرنګه چې د اکبر دوره د پښتنو او مغولو دسخت ټکر دوره ده او پښتنو هم ګوریلایي او هم د ټګر جنګ ورسره کړی نوځکه زموږ زیاتې ملي کیسې د همدې وخت سره اړه لري او د همدې وخت و تایع یې په غېږه کې خوندي دي ، د تور دلي شاهو ، آدم خان درخانۍ او ډېرې نورې کیسې د همدې وخت پېښو زېږولې دي .

د پښتو اولسي ادب نورډولونه هم داسې تاريخي پېښې له ځانه سره لري چې وخت پر وار له واره څرګند يږي خصوصاً ځينې يې دومره دقيقې دي چې زموږ دليکلي تاريخ تيارې خواوې روښانوي او له تاريخي پېښو سره مرسته کوي په دې برخه کې په خاصه توګه هغه تاريخي نارې يادولای شو چې دهوتکو ددورې ،دنادرافشاردوخت او داحمد شاه بابا دوخت پېښې پکې خوندي دي (۱).

د ناړې هره يوه ډېرې دقيقې تاريخي پېښې له ځانه سره لري چې دو يلو وخت يې کال په کال او ان مياشت په مياشت معلومولای شو. دا په حقيقت کې زموږ د ټبرو نيکونو اولسي تاريخ دی چې دنارو په وسيله خوله په خوله را نقل شوی او موږته رارسېدلی دی ،په دې تاريخي نارو کې ډېرې تاريخي پېښې خوندي دي چې تاريخونو يې ياد مغرضينو په اثر ياد نورو عواملو له مخې بڼه اړولې خو موږته يې د ناړې اصلي بڼه را ښيي چې موږ دمورخينو تروينا ترجيح ورکوو او خپل تاريخ پرې روښانه کوو، همدارراز د ناړې ډېر داسې نومیالي مېړونه را معرفي کوي چې تاريخونو يې نوم نه دی خوندي کړی او دې نارو موږته را رسولي دي. همدا راز په دې نارو کې ځينې داسې پېښې موندلای شو چې تاريخ تر اوسه پرې پټه خوله دی او داناړې يې موږته روښانوي .دنمونې په توګه تاريخونه

---

(۱) د هوتکو نارې پخوا په ځانګړې رساله او دخلکو سندرې کې خپرې شوې،د نادر افشار سره دمړ بوطو پښتو خو نارې پروفيسور رسيال کالا کړې په «پښتنو او پښتانه په سهيلي پښتنو نخوا کې»راوړې او داحمدشاه بابا دوخت نارې لاتراوسه قلمي دي چې ښاغلي سيرحيدرصاحبزاده ددې کسر بولېکوال ته ورسپارلې دي.

دانه ښيي چې کله شاه محمود هوتک په اصفهان کې وسړ د ده تابوت څه شو ؟ او دی په کوم ځای کې خاورو ته وسپارل شو؟ د هوتکو يوه ناره چې دشاه محمود د خور بي بي زينبې دخولې ده اوشاه حسين ته يې خطاب پکې کړی. دا موضوع داسې روښانه کوي:

دزعفران احسان سپږ ږه دی و روره وړی

يومې بې راوستل و رېږونه  بل يې دی دشاه محمود تابوت راوړی (۱)

د اناره نه يوازې داښيي چې د ۱۱۳۷ هق کال په حدود کې و يله شوې بلکه دشاه محمود هوتک په باب د تاريخ سکوت هم ماتوي او واضح څرگندوي چې د شاه محمود هوتک مړی له اصفهان څخه دملا زعفران په وسيله کندهار ته راوړل شوی اود ده احسان بي بي زينبې په پوره ته ول ياد کړی دی. دا موضوع څکه سمه د ه چې پښتانه عنعنه لري خپل مړی په پردي وطن کې نه پرېږدي بيا خصوصاً ديوه داسې سهم سړي لکه دشاه محمود هوتک مړی. که دې نارې د اموضوع نه وی روښانه کړې نوله سوو سره به تل دتاريخو نو دلوستلو په وخت کې داپوښتنه پيښيدله چې دشاه محمود مړی څه شو ؟آيا پښتنو په پردي هيواد کې پريښود ؟ دې نارې دا موضوع حل کړه خو دا چې په کندهار کې يې زيارت اوس څرگند نه دی دا هم ښايي ددې له پاره پېښ شوی وی چې افشاريانو د کندهار تر بيانيولو وروسته تو هين و رته و نه کړي او مړی يې بې قدره نشي ، دا هم دسپين ږيرو له خولې اورېدل شوي روايت دی چې د شاه محمود قبر اوس هم په کندهار کې ځينې کسانو ته څرگند دی.

---

(۱) دخلکو سندرې ۱۳۸۰ مخ.

## داناري هر ايوه دتاريخ پر څېر ګل دي چې دلته يې څو لمولې راخلو:

۱) بياسم سوى د هوتك دتالو فال دى

باباخپل ملك له ګرجي خلاص کې ء محمود کړى د کرمان نيوا وخيال دى

۲) رحيم ګل سليما نخيل و کړې بيکى.

که زوندى ولاړم تر کوره را په سر کې ء درابيا توره شوني

۳) که زمرى دى شاه اشرف د جنګ زمرى دى

شاه اشرف ته کام را نغى د نادر په اشرف خان ځکه برى دى

۴) ګرڅو له سيدال اسپه لنده لنده

شاه حسين هم وروووت اير انيان يې تر نادره کړه په منده

۵) که حورې د هوتکو ښځې حورې

په منځ ميدان ولاړې له دښمن سره په کلکه و هي تورې

۶) که خيال سو د نادر د غسى خيال سو

اوس به زر کندهار خلاص سى چې په دواړو ستر ګو روند جنګى سيدال سو

۷) زينو بې له زړا و ياسته تور کسى

وى و يل سليما ن را نغى نادر زو رسو اوس زماد پلار ښار نسى(۱)

د هوتکو تردورې را وروسته پښتنې سنځر خپلې ناري په دې توګـــه

په خپله غېږه کې خوندي کوي:

۱) سدو لا(۲) و يل سمندې پر پښتې لندې

په راستى قدم درو اخه شاه ندر(۳) په پښتنې و هى سلندې

---

(۱) دخلکو سندرې له ۱۴۰ تر ۱۵۹ مخ پورې.

(۲) سدو لا دسعدالله ګړ نى (زباني) بڼه.

(۳) شاه ندر ـ نادرشاه افشار.

۲) سندو لا وېل اتلکه وچه کلکه

په راستي قدم درواخه(۱) شاه‌ندر داس پرښاوه‌ی چغکه

۳) شاه ندر کاپره (۲) وادې وره‌بېړ یه (۳)

چې ورځې نورې هم وې داختر په ورځ دې پېړورې بنده به(۴)

په دې سربېره داتڼ په نارو کې هم څېړې داسې نارې شته چې خاصې تاریخي پېښې خوندي کړې او ورسره یې د خپلو وېل کېدو تاریخ خوندي ساتلې دی ۱۳۸۸ هـ ق کال دناصر واوسلیمانخیلو ترمنځ د برښنا باخدی نومې ښځې په سر خوړې شخړه وشوه، سلیمانخیل بر شول او ناصر و په خپل اتڼ کې د دې نارې په ویلو سره خپله سپېره الله و ښوده او سلیمانخیلو ته یې وویل چې زمونږ د بر خوانان د وطن د آزادۍ په جګړه کې ست شوي دي:

ته ګرم نه یې، سلیمانه د تاغوښ تن ورځې مښت سو

ناسر په سرې کم دی ناسر د کندهار په جنګ کې سپېن سو (۵)

یاهم داتڼ دا لاندې نارې چې په جنوبي پښتونخوا کې وېلې شوې او د تیمر سینګل په لاس د سیدال ترین چې یو مېړنی ځوان و د شهید کېدلو پېښه یې انځور شوې ده، دې نارو هم دا پېښه خوندي کړې او هم د دې نار و د ویلو نېټه ترې ښکاري:

۱) توری سینګلا نوګراني تو ری

ماول تن دې بو روی دسیدال سو رې تري تري تو ټیرې

---

(۱) واخه ـ واخله. (۲) کاپر ـ کافر. (۳) بېړی او بېتل د بخت چپه کېدلو په معنی ده.

(۴) سبال کاکړ، پروفیسور ولي محمد خان، پښتو او پښتانه په سهيلي پښتونخوا کې.

(۵) رفیع، حبیب الله، دوه ټنه کوچي پښتو لیکوال او مؤلفین، کابل مجله، د ۱۳۵۵ کال، او وه ګڼه، ۵۴ مخ.

۲) تیمر مینګل ول زوره دخدای زوره

یا مه‌سپین سیدال زو کړی وی له‌سوره یا مه‌سپین سیدال تر بو روای

۳) تیمر مینګل چې ګوته پرې کوله

چې په‌زیړ سیدال یې خوله‌ولګوله (۱) ګمر توپک یې مات کې

همدار از یوه بله‌ناره دجنوبي پښتونخوا دیوه‌مېړني زوی‌سردار بنګل خان جوګیزي دمېړانې سرینه داسې یادوي:

که‌اوور دی‌دتسیل په‌(۲) سراوور دی

بنګل‌سرداریې‌مړ کیء اوس‌دې‌واخې زریپ‌خان(۳) که‌زورور دی(۴)

دانړ لاندې دا ناره دکاکړستان د بورې دتاریخي ناوی د وه‌نومورکې را ایژني او یادېږ ژوندی‌ساتي :

توره‌تو ته‌مات‌دې سه‌خابنونه

«رحمان»در کې‌جوړ کړي‌دي‌ځایونه(۵) «هنو»درختای‌نسي

لنډی چې داولسي ادب یو خوږبول دی، دملي پېښو بړې خاطرې له‌خانه‌سره‌لری او پښتنو

---

(۱) د محلي‌روایاتو له مخې یو‌ه پلا د مینګلو او سپینو تر ینا نو تر مابین جنګ وشو، په‌دغه‌جنګ کې دمینګلو مشري تیمر کوله، په‌نتیجه کې سیدال تر ین چې د هرنا یې دسیمې دخد رانی‌یېړا او سیاه‌نکي ڤ دمینګلو له‌لاسه په‌حق ورسید (سیال کاکړ، فولکلوري سوغات، ۹۲-۹۳ مخونه).

(۲) اوور-اوره، وریځ. تسیل- تحصیل. (دمالیو تولو لو حکومتي دفتر)

(۳) واخې-واخلي (دولسی په‌معنی) زریپ خان-ظریف خان (دبنګل سردار ملګری)

(۴) سیال کاکړ، پروفیسور ولي محمدخان، فولکلوري سوغات ۱۹۷۸ع ۸۸ مخ.

(۵) فولکلوری سوغات، ۱۱۰ مخ.

تهددوی د پلرونو د ننګ، میړانې، وطن ساتنې او د متجاوز غلیم په مقابل کې له سرتېر-
ېدنې او اتلوالۍ کیسې کوي او دوی ځوي چې که غلیم له هر څومره قوت سره د
دوی په خاوره او مقدس وطن یرغل کړی وي نو د افغانانو د ایمان او غیرت
تقاضا دا ده چې په نرو سرو جنګیږي او د تسلیم غاړه ورته کښېږدي.

هو! د لنډیو په لمن کې ډېرې تاریخي پېښې رانغښتلې شوې چې د لنډیو د لرغونتوب
او زړو نمونو په توګه راپاتې دي، په لنډۍ کې پېښې ته لنډه اشاره ده چې -
سړل یې تاریخي خبرتیا او هڅې غواړي، دلته دا څو لنډۍ په نمونه کې راوړو چې
هوتکي غورځنګ، احمدشاهي اتلوالۍ او د افغان او انګریز د دریو ګونو جګړو-
پښتو ته نغوته کوي:

حاجي میر و بسه جنتي شي — مو زدګر ګین د ظلمه تا خلاص کړي یو نه
احمد خدای دې جنتي کړه — تر هندوستانه پورې تا کړي جنګونه
زمانګي د اټک پل دی — چې پرې تېر پرې پښتانه کړه کربچونه
د اکبر خان غازي په توره — وطن زما شو دښمنان په ماتې ځینه
توره په لاس پورې په غاړه — جانان و لاړ دی د میوند غزا ته ځینه
پر ایوب خان مې سلام وایه — دا دی جانان مې کومکی د رولېږ نه
د هندوستان پرنګي ژاړي — که ژړا بوم پر د نیاوي کونډې په شونه
د پېواړ سر د پر ښوو نه دی — ځو د ځلمو پرې جوړ نشي زیارتونه (۱)

او نورې په زرهاؤ لنډۍ

همدارنګه کړې هم د ککړو او جنوبي پښتونخوا د ملي پښتو ملي مقاومتونو،
د انګریزي استعمار ضد غزاګانو او د پښتنو اتلانو د یادونې او ساتنې ژوندۍ تاریخونه

---

(۱) پښتنې سندرې، لومړی ټوک، د ښاغلي محمد دین ژواک په اهتمام، پښتو ټولنه
۱۳۲۳ ش، بېلابېل مخونه.

دی چې په مېنه یې په خپله ځېره کې را نغاړي او خپل اتلان او د دوی قهرماني د خپل اولس په ذهنونو او خولو کې د تل له پاره ساتي، لاندې څو نمونې له خروار څخه موټي دي چې هره یوه یې یوه ډېره له ځانه سره لري او د ویلو وخت یې ترې ځرګند یږي:

د ښنګل په سرګ خبر سو — زوب ته سره پرنګیان تر سو
د کاکړ ونوم بې ښه کې — جنګ یې یاروتر غرمې وکې
ځله مات بې کړه ګورکیان — تر جرمن سخت دی کلا خان
کلاخې قایم بې مل دی — اور په سرو ګورکیا توپل دی
خود بې ژاړي ناوکې — تر بازد سر و وزي ګولې
سره دې سره کړ مسیکه ټېې — بخت ناسې ځان دې کې غازي (۱)
ښنګل سر ظریف و ښتلي — پر بروب غر دی نر بدلی
په تحصیل کې تکهار دی — د سروښکار کوې شیرخان دی (۲)
لاټ به نه وی په آرام — په غرو کې ګرځي بلوچ خان
چې شینکي تا نه یې کښه — ګل بارو سپور وکه پیاده
یو اختر بل شیر علي — دواړه مضبوط ګیان دی (۳)
تحصیل بند دروازې پورې — نن ساون مسه خپل ښوري
انګریز سترې سوی په ښو — نسي «باټکي» په جهاز و (۴)

---

(۱) د خلکو سندرې ۱۶۴-۱۶۸ مخونه.

(۲) حمیدالله صاحبزاده د پښین، کاکړي لنډۍ، پښور ۱۹۶۷ ع ۸۲، ۸۵ مخونه.

(۳) سیال کاکړ، پروفیسور ولي محمد خان، غاړي، کوټه، ۱۹۶۹ ع ۸۳، ۸۴، ۸۷ مخونه.

(۴) سیال کاکړ، پروفیسور ولي محمد خان، کاکړۍ، کوټه ۱۹۷۳ ع ۲۲، ۴۲، ۳۸ مخونه. *

سرو کې هم د پښتو اولسي ادب د نورو ډولونو غوندې په خپله غېږه کې تاریخي پېښې سوېته رارسوي چې هم پېښه ورسره ده او هم یې د ویلو وخت او عمر را ترلاسه کېږي:

۱) په ماشینډارو کاڼي بوټي لوټوینه    غزا د شګې پله ته راغله

۲) ورته راکاږه توپونه    ناوګي سومند وړانه کړه    عمرا خانه (۱)

د پښتو د ملي کیسو د مینو اتلانو خاطرې هم پکې مومو لکه:

۱) اوس به شیرینه خولګۍ چاته ورکوینه

سومن وږې وږې سلګۍ کړي دادی مرینه

۲) ژاړي ماسونې چې ما به نه حلالوینه

سره لاسونه وار په وار وهي ژړا کوینه (۲)

---

* د تېرو لویو رټنیو نارونو نومونه د هغو غازیانو نومونه دي چې د کاکړستان او وزیرستان په سیمو کې له انګریزانو سره د خپلې ملي خپلواکۍ له پاره په-مېړانه جنګېدلي چې زیات شمیر یې له میدانه د بریالیو غازیانو په توګه راوتلي خو بیا وروسته انګریزانو په چل ول او د هغو ځایي کسانو په لاس چې انګریزانو پیسې ورکړې نیولي او په ډېره بې رحمۍ یې شهیدان کړي دي. دوی اکثر وتر لو سرې-تېریو الي جګړې وروسته له انګریزانو سره پنجه نرمه کړې کلاخان او قایم خان هغه مېړني غازیان دي چې له انګریزانو سره یې په نورو او پدو جګړو سربېره د افغانستان د خپلواکۍ د بیا ترلاسه کولو په جهاد کې هم د زړه او مېړني برخه درلودلې ده او جنرال غازي یار محمد خان وزیري چې د دوی د ګلهسنګر سلګري ډوخو کاله پخوا دی کړ شو لیکوونکي ته د دوی د بې ساري مېړانې ستر ګولیدلی حال ویلی دی.

(۱) پټنګ ، عبدالکریم خان ، سروکې، ۱۳۵۸ش ، بېلابېل مخونه .

(۲) هغه اثر.

تر دی چې راتیرشو داولسی ادب په هغوسندروکی چې شاعریی ښکاره دی د پښتنو دسبی تاریخ ښشپړ ښشپړ با بونه خوندي شوی خصو اولسی چاربیتو په دي لاره کی ستره برخه درلود لی ده ، د اولسی ادب همدی واقعیت فرا نسوی مستشرق دارمستتر چې د پښتو ډیرې چاربیتې یې راټولې کړې اود پښتو نخوادشعرهار و بهار یی ترې جوړ کړی ، دې ته اړ کړی چې و وایی:

« پښتانه خپرونی نه لری اولسی سندری یې دوړ ځپانې ځای نیسی او د سیاسی ژوند ټولې پېښی یې دخلکو سندرو ته لارنومي .» (۱)

داواقعیت د پښتو اولسی سندرو ډېر ښه ځلولی چې دلته یې داو ړدو ځیرنو په هیڅ ډیره اندازه یادونه وشوه.

**۴ــ زړې زنښي :**

داواسی سندرو دلرغونتوب د څرګندیدلو له پاره په تاریخی پېښو سر ببره زړې نښې هم ښه مرسته کولای شي .

موږ داولسی ادب په بیلا بیلو ډولونو اوسندرو کې ځینې داسې نښې لرو چې زموږ په زاړه ژوند کې ژوندۍ وې او هغه سندری چې دا زړې نښې یې په غیږه کې خوندي دی په حقیقت کې په هماغه لرغونو ختونو کې ویلې شوې او موږ ته خوله په خوله رالېږدیدلې دي .



دنمونې په توګه :

سپوږمیه سروهه راخیږه

یارسې دګلولو کوی ګوتی ریبینه

یوه لنډۍ ده چې داکثرو پښتنو په خولو کې ناسته ده او هم دلنډیو په مجموعو

---

(۱) دا رمستتر ، دپښتونخواد شعرهار وبهار ، پښتو ټولنه ۱۳۵۶ ش ، دفرانسوی سر یزی پښتو ژباړه ، ۲۱ مخ .

کې خپره شوې خو دزیات لرغونتوب په باره کې یې ډېر لږ فکر شوی دی. کله چې دالنډۍ دیوه دراك پښتو پوه جونزانو لمسن غوږ ته ورسیده نو د آریائیانو هغه دودته یې پام شو چې دسپوږمۍ په رڼا کې به یې دسوما (ـهوماـ اومه ـ نمه) بوټي ریبدل او بیا به یې د سوماسست شراب تریې جوړول، له بلې خوا یې مطالعه وکړه چې نور هېڅ داسې گلونه نشته چې دشپې دې لوکړای شي نو ځکه ورته څرگنده شوه چې دالنډۍ ډېره زړه او لرغونې ده او له هماغه تاریخي وخت سره اړه لري، ددې تکو په بنایي حکم وکړ چې دالنډۍ د زرگونو کلونو عمر د رلودونکې او هغه وخت ویله شوی چې پښتو به له خپل آریایي دود سره سم دسوما بوټي لوکول او دشیری دایستلو له پاره به یې له ځانه سره راوړل د همدې لرغونتوب له مخې ده خپله هغه مجموعه چې پښتو متلونه او لنډۍ یې پکې راغونډه کړې د «سپوږمیه کړنگ وهه* راخېژه» په نوم په کتابي بڼه خپره کړه او دمجموعې په سریزه کې یې دې موضوع ته نغوته وکړه(۱).

موږ دوړ و په مشاعرو کې یوه بیت لرو:

د غرۍ په سر اوسان زموږ په کلي کې شين ستر گې طالبان (۲)

---

*اصلاً په لنډۍ کې د «سر وهه » کلمه ده چې د« کړنگ وهه» کلمه سهواً بناغلي مؤلف کښلې، د کړنگ وهه کلمه په دې لنډۍ کې راغلې:

سپوږمیه کړنگ وهه را لویږه

پر ماقیامت دی چې په تو لو قیامت شینه

چې په دې لنډۍ کې سمه لگیږي او مطلو به معناورکوي.

(۱) وگوری: سپوږمیه کړنگ وهه راخېژه، ۱۹۶۹ع، پېښور، سریزه.

(۲) سیال کاکړ، پروفیسرولي محمدخان، سپیڅلي گایونه، ۱۹۶۹ع، کوټه، ۱۰۶مخ.

## د غره په سر نمان

## ترې راو وتل شین سترګې طالبان (۱)

دا بیت که څه هم د زرګونو کلونو عمر درلودونکی نه دی خو د داسې دوري نمایندګي کولای شي چې «سوما» (=اوسان یانمان) لاله درنښت او نامه څخه نه وولو یدلی.

« دنیاد غوایه په ښکر و لاړه ده» د پښتو یو مشهور متل دی او د هغه وخت نمایندګي کوي چې آریائیانو د خپل اصالت او نجابت له مخې په کرنه لاس پوري کړ او د خپلو کلتوري او مذهبي رواياتو په رڼا کې یې چې ورته ویل کیدل به:

«ای انسانانو یو بې و تړیء ،مځکې د کرلو له پاره ښې یو یې کړیء او پستې یې کړیء او ور بشی او غنم پکې وکری ء زیار کښ کرونکی ته بویه چې تل دغو یو ژغ ته سپاره و رواچوی او مځکه ښه په یوې کړی» (ریګو یدا )

« ای انسانانو د غنمو او نوروشیانو د کرنې له پاره په سپاره مځکه سره شیرې کړی،ښکلی اربې و چلوی او ځانونه په وساتی» (ریګو یدا) (۲) .

په ویدی سرودونو سر بېره اوستا یی سرود و نه هم د کرنې درنښت او دی شریفانه کارته هڅونه کوی (۳) .

دوی په کرنه لاس پورې کړ او په دې متل کې یې د کرنې په چارو کې دغوایه اهمیت څرګند کړ خو بیاوروسته — وروسته له دې متل نه خرافی تعبیر وشو او ظاهري معنی یی ترې و اخیستله چې د غوایه په ښکر باندې دمځکې

---

(۱) داډول یې په وړډګو کې دلیکونکی له خوا ثبت شوی.

(۲) حبیبی ،استاد عبدالحی ،د پښتو ادبیاتو تاریخ ،لومړی ټوک،دریم چاپ ۳۰مخ. (۳) همدا اثر.

و دریدلو افسانه ترې جوړه شوه، زموږ په اولسی ادب کې داستل په خپله اصیله معنیژوندی او خوندی دی چې لرغونتوب یې هم په خپله محتوی کې نغښتی دی.
موږ په اولسی سندروکی یو سروکی لرو:

شینکی رودونه* ؤ پاچادبلخ * بلخ درې- درې* شینکی رودونه» (۱)

چې ظاهراً عادی سروکی دی خو که لږ دقت وړته وشی څرګند یږی چې دا سروکی له هغی دوری سره اړه لری چې تاریخی بلخ د«ام البلاد »په توګه دآریانا په زړه کې ودان ؤ، افغانانو خپلواکه واکمنی پکې جوړه کړی وه او زموږ دلرغونی تاریخ او سرودونو په بنادلوړو بیرغونو ښاربلل کیده چې دااتکل په سروکی کی«دبلخ دپاچا»تعبیر سړی ته په لاس وړکوی.

په پښتو اولسی ادب کی یوه «ښادی» (دوادسندره)ده چې:

دچندنو لاری یې جوړه په تندی کړه

د(پلانکی) ناوی یې جوړه کاغذی کړه (۲)

په دې سندره کی یو داسی لرغونی دوډژوندی ساتل شوی چې دآریانا په یودایی دوره کی دودؤ او هندوانو او مسلمانو هم ساتلی او هغه داچې دچندن(صندل، چې په پښتو کی یې په عامیانه ژبه «سندر» هم بولی) له بوری څخه دسپیڅلتیا او خوشبویی په غرض کار اخلی او په تندی یې موږي (۳)داسندره ښئی هغه وخت

---

(۱) رفیع، حبیب الله دخلکو سندری، دافغانستان اکادیمی،۱۳۳۹ش،۱۲۶ مخ.

(۲) د خلکو سندرې، ۸۳ مخ.

(۳٦) سیدانوار الحق، اردو پښتو لغت،مرکزی اردو بورډ ، لاهور،۱۹۷۰ لومړی توك، ۸٦۰مخ.

وايي چې دناوې دجوړولو په وخت کې ددې په تندي سندر دوه پوي او پړی سور کوي يې. دانوري «ښادي» هم ددې لر غوني دود ښوونکې او زړې بېلګې دي:

۱) زمو ږ له ښو زوېلنو بخت دی

(پلانی ) د چند ن ونه (پلانی) يې زر برخ دی (۱)

۲) ناوې سره خالونه کېږده

په (پلانی) پسې راووزه دهمز ولو سینه پرېږده

۳ ) ناوې سره خالو نه کېږ ده

د(پلانی ) کره چې ورسې پر لپو رو نوموْ نه کېږ ده (۲)

په پښتو اولسی ادب کې ښو ښادۍ او ريدلی کېږي چې مطلب يې دکوړنۍ د پرېښت او پنځېدل دی :

۱) ناوې ښې ولې دې تخت دی

که مې جان ته خدای زوی ور کړ ناوې ستا تندی د بخت دی (۳)

۲) زرغونه سې ناوکيه

داوو زامنو مو رسی چې و لاړه کې کېږدیه (۴)

۳) زرغونه سې ناوکيه

داوو زامنو مو رسی چې درجوړه کې او يه (۵)

---

(۱) سیال کاکړ ، پروفیسورولی محمدخان، فولکلوری جواهر، ۱۹۷۹ع کوټه ، ۹۳ مخ .

۲ — همدا اثر، ۱۱۰ مخ.

(۳) دخلکو سندری ، ۹۴ مخ .

(۴) نوری، استاد محمدګل ملی سندری، ۳۲۳، پښتو ټولنه، ۱۰۹ مخ

(۵) فولکلوری جواهر، ۹۲ مخ.

ددې سند رو خيال او فکر ډېر لرغونی دی او زړو آريايي سندرو ته ډېر ورته ښکاري ، گوستا و لو بون ليکي : چې زړو آريا ئيا نو دکورنی پرستش کاوه او خپل تيکونه يې ډېر مقدس اوستانه گڼل او هر کله به‌دوی خپلې کورنی او کهولونه ډېر ول او کهول يې د ټولو نعمتو سر کز گاڼه. د آريائيانو په‌زاړه کتاب ريگويدا کې يو سناجات داسی لوستل کېږی :

«خدای تعالی‌دژوندون واکمن دی ،

مالك الملك‌دی ،

ښاغلی کورنی سړو ته ورکوی ،

خدايه ! سوږ ستاسر يی‌يو

بی‌او لاده ، بې ښېگړی سومه وژنی!» (۱)

دريگو يدا دامناجات او دښادی د سندرو دا د عاوې بيخی سرهلنډی او د کورنی دمينی دلرغونی فکر ښکارندوی کوی.

د ښادی يوه بدله ده :

شال او پښين يې ښه‌له‌مخه

زموږ د ناوې ښه له‌مخه ‌‌‌‌‌‌‌‌‌ سنځرنيکه يې سپورله مخه (۲)

دا لاندی ځو متلونه‌هم داسې زړې نښې لری چې په خپله يې خپل عمر او د ويلو وخت ترې ښکاري:

چې تورې په تېرې شي ‌‌‌‌‌‌‌‌‌ پل په اشرفی شي (۳)

---

(۱) پښتانه شعراء ، لومړی ټوك، ۱۰مخ .

(۲) فولکلوری جواهر،۹۸مخ .

(۳) طاثر،پروفيسورمحمد نواز، روهی متلونه، پښتواکيډمی، ۱۹۷۵، پېښور،۲۷۵ مخ.

له هغه‌وخت سره اړه لري چې دشاه اشرف سکه چې خلکو اشرفي بلله په‌چلند کې وه.

یادابل متل دی:

اسمان به ولاړ وي لاټ به سردار وي

له هغو وختو سره اړه لري‌چې پښتانه‌له انګریزانو سره لاس اوګریوان وو او انګریزی لارډان دپښتنو سیمو ته‌راغلي‌وو، دافغانانو دزیات نفرت وړ لاټ «لارډرابرټس» دی‌چې دافغان انګریز ددوهم جنګ په اوږدو کی په‌کابل کیږ او زموږ ددری په‌اولسی سندروکی دا سی یادشوی:(*)

محمد جان سردمیدان اس ایوب خان شیرغران اس

میربچه خان رسرسان اس آزادی فخرافغان اس

راپت کل لات کلان اس بیا بیا درانګوربخو (۱)

د پښتو اولسی ادب په دې برخه‌کی هم ډیری نمونی لری چی څېړل یې د اولسی ادب‌په‌پېژندنه اوسپړنه‌کې زموږ مخی ته‌نوی ورونه پرانیزی.

۳ — لرغونی جوړښت:

---

داولسی سندرو دعمر او لرغونتوب دڅرګندولو په‌برخه‌کې ددې‌سندرو دظاهری جوړښت څېړنه هم ډېره مرسته کوی اوموږ ته ددې ادب لرغونی ریښې او ځایی (بومی) تاریخی سوابق راښیی.

لکه څرنګه چې دیوی بې ډبرلیکه لرغونی ودانۍ عمر او قدامت دجوړښت

---

(*) داسندره لوسړی ځل ډارمستتر دپښتونخوا د شعرها راوبهار په فرانسوی برخه‌کې خوندی کړی ده.

(۱) غبار، میرغلام محمد، افغانستان درمسیرتاریخ، ۱۳۴۶ ش.

لمسبك، په‌ودانۍ کې‌دلګول شوې مسالې او دو رته او ړه برلیکد رلود ونکو

و دانیو د پر تلنې له مخی اتکل کیږی ، همدا راز موږ کولای شو خپلې

او لسی سندری دظاهری او شکلی جوړښت له خو اهم و څېړو او دآر یاناد نو رو

لر غونو ادبیا تو له زړو نمو نو سره یی پرتله کړو.

په‌دی څېړ نه‌کې له‌دو و عمده لارو خپل هدف ته رسیدلای شو یو دا چې د

او لسی سندرو دجوړښت مساله (الفاظ) په‌نظر کې‌و نیسو او وګورو چې په‌دی

نمو نو کی کوم — کوم لر غو نی لغات راغلی چې‌اوس له ژ بی او محاو ری

لو یدلی اویایی هم‌له‌مو ږ سره ډیر لر غو نوالی تماکلی دی او بله لاره‌یې داده

چې مو ږ داو لسی سندرو کالب له هغو کا لبو نو سره څنګ په څنګ کیږدو

چې په‌لر غو نی آر یاناکی دود وو ، موږ په‌دې بر خه کې‌هم له‌او ږدی څیړ نی

څخه تیر یږو او په‌یو څو نمو نو بسنه کوو .

الف ـ دالفاظو لر غو نتو ب :

په‌دې بر خه کې دپښتو دالاندې متل :

«آره آره یوم پر غاړه» (۱)

ډیره ژو ندی نمو نه‌ده چې دآر یا، آر یان او ددې لړی نو رې کلمې تر موږ

پو رې رانقلوې او هم دهغه و خت نمایندګی کوې چې آر یائیان د کر نې په‌شر یفانه

شغل بو خت شوي وو.

---

(۱)نو ری، استادمحمد ،متلو نه، ۱۳۲۷ پښتو ټو لنه ، ۲مخ . رو هی متلو نه

۱۵ مخ. په‌ځینې‌محاو رو کې‌دیو م په‌ځای لو ر (دپښتو ادبیاتو تاریخ ۳۲مخ)

و یل کیږي په همدې تو سن‌لوی استاددا متل« آره لور پرغاړه» ضبط کړی‌دي

(دپښتو ادبیاتو تار یخ ،۳۲ مخ ) .

محققین د«آر» دوې معناوې کوي یوه یې داده چې«آر» پهسنسکریټ کې د اصل او بنیادمعنی لری او آریا نجیب، شریف او پا رساته وایی او د ځینو تعبیر دادی چې «آر» په زړه سنسکریت کې د کرنې او زراعت مفهوم درلود، نو ځکه آریا کرونکی او زارع ته ویل کیږي... دآریانو په باب دا دواړه تعبیر مسم دی ځکه چې دوی کښت ته په درنه سترګه کتل، دوی په خپل دین کې مکلف وو چې کرنې ته پام وکړي، په ریګویدا او اوستا دواړو کې د کرنې کارونه دشرافت پهسترګه کتل شوی او کرنه یې دشریفو،اصیلو او پوهو خلکو کار بللی دی، په ویداکې راغلي دي: «پوه او دانشمندانسان تل په کرنه اوږغ بوخت وی» په اوستا کې هم تل کرونکی شریف ګڼل شوی او زردشت خلکو ته دکرنې او څارووو دپالنې تشویق کوي، زارع ته په درنه سترګه ګوري او دګا څونو په یوه سندره کې بزګران او کرونکي دانسانانو په خوراولوړه او شریفه ډله کې یادیږي» (۱) نو ځکه دا دواړه تعبیرونه سره یو دی اوپه پوره ثبوت سره ویلی شو چې د«آر» کلمه په ژوندی توګه اوپه همدې معنا را پاتې ده چې ددې متل لرغونوالی او دزړو نو کلونو عمر درلودل را څرګندوي .

ب ـ د کالب لرغونتوب:

کله چې دپښتو داولسی سندرو دالفاظو له لرغونتوب څخه تېر شو نو بیاددې سندرو بشپړ کالب او ادانې ته را رسېږو ، موږ چې دپښتو دهرې او لسي سندرې کالب او ادانه ترڅېړنې لاندې و نیسو، سېلابونه اوسپینونه یې وګڼو نو ددې په ځای چې له عربی او دراخېرمه ژبو لهموجودو سندر وسره ولګوي دا وستااو ریګویدا له سرودونو سره اندول کیږي او په دې وسیله خپل لرغونتوب ثابتوی .

دا اندولونه ترا وسه ډېره لږ ترڅېړنې لاندې نیول شوي ځکه چې زموږ

(۴۷) دپښتو ادبیاتو تاریخ ، ۳۰ مخ .

داولسی‌ادب‌په کار بو خت‌لیکو الان‌دزړ و آر یایي‌ادبیاتو له‌مطالعې څخه لیرې‌پاتې شوي سر ه‌له دې چې دپښتو او لسي ادب اساسي څېړ نه‌د آر یانا دلر غو نو سندر و او ادبیاتو په رڼا کې کېدلای شي نو ځکه دې بر خې‌ته‌ز یاته تو جه په کار ده او که په دې باب ژ و رې څېړ نې وشي نو ز مو ږ د او لسی ادب ډېرې نمو نې به‌هم دفکر او هم د کالب له‌مخې داو ستاو و یداله سر و د و نو سر ه اړ خ و لګوي او دلر غو نتو ب په‌څېړ نه کې به‌یې نوې لارې پر انستلې‌شي.

څېړ نو ال دو ست محمددو ست په‌خپل اثر «داو لسي‌ادب لارې» کې په دې بر خه کې څو نمو نې و ر کړې ( ۱ ) او دادي دلته ز ه هم دوې‌نمونې په‌دې بر خه کې داو ستایی متو نو په‌رڼا کې‌څېړ م :

دو هو خشتر څلو ر م ګاځ (ــګاتهٔ) دو ه و یشت بندو نه لری او په هر بند کې یې‌دری بیته دي چې هر بیت یې‌څو ر لس سپڼه یا هجاوی لری‌چې دمسر یو و یش‌یی سره بر ابر او تر او و م سیلاب و روسته‌دی (۷+۷) په‌دی ډو ل :

«و هو خشتهر م و یریم باګم ایبی‌ییر یشتیم» (۲)

ژ باړه: «ښکلی‌غو ر ه کړه شوی هیو اد(جنت) د ر یښتنوالی بدله ده» ز مو ږ په اولسی سندرو کې کاکړی( کاکړی‌لنډی، کاکړی غاړې) معمولاً داسې جوړ ښت لري چې یایې یو بیت ۱۶ سیلابه، یاپنځلس سیلابه‌او یاهم څو ر لس سیلابه وی دڅو رلس سیلابې غاړو دمسر یو و یش کټ‌مټ داو ستادپو رتنی سندرې غو ندې دی، دنمو نې په‌تو ګه:

دبو تبو تنی تړ م د شا کار میلی ته‌ځم(۳)

---

(۱) و ګو رئ : دپښتو د او لسي ادب‌لارې: ۱۳۵٦، پښتو ټو لنه ،تر ۱۲۸ مخ و روسته (۲) پو ر داؤ د ،«ګاثاها ـــ سرو دهای ز ر دشت»، دانشګاه تهر ان ۱۲۲۴ ش ،۳۸ مخ. (۳) دخلکو سندرې ۱٦۳ مخ .

داوستاداسندره او دپښتو دا کاکړی دسیلابونو دشمېر په‌وخت کې‌داسې سره څنګ ترڅنګ ایښودلای شو:

(اوستا) :وهوخشتهرمویریم باګم ایبی بیر یشتیم

د هجاؤشمېر: ۱ - ۲ - ۳ - ۴ - ۵ - ٦ - ۷ ۸ - ۹ - ۱۰ - ۱۱ - ۱۲ - ۱۳ - ۱۴

(پښتو) :دبوتوتنی ترم د شا کا رسپلې ته‌څم

په‌همدې ترتیب داشتو ددوهم ګاڅ (ګاتها) چې څلور هاته لری ،ټول شپږشپیته بنده دی ، هر بندیې پنځه بیته‌لری چې‌هر بیت یې ۱۱ سیلابه کېږي‌او دمسر یو ویش‌یې ترڅلورو سیلابو وروسته دی (۴+۷سیلا به ) په‌دې‌توګه:

«اوشتااهمای یهمای اوشتا کهمای چیت » (۱)

ژباړه: «دزړه له‌کومي غوښتونکی یم‌دهر یوه له‌پاره هغه‌چې‌دی یی‌غواړی»

د پښتو په اولسي سندرو کې دوړو دمشاعرو ( چې د مسابقې په دودیې سره وایی) ډېر بیتونه په‌همدې سکښت اوجوړښت شته‌چې‌دبیت لومړی‌مسری‌یې ۴سیلابی اودوهمه یې اووه سیلابی‌وې چې‌ټولې هجاوې‌یې ۱۱ کېږي لکه:

د بو ترتا خچې او ندوګز کړې‌سرې لچې (۲)

داسندرې هم دسیلابونو دشمېر څرګندولوله‌پاره داسې‌سره‌ملې کولای‌شو:

(اوستا):اوشتا اهمای یهمای‌اوشتا کهمای چیت

دهجاؤشمېر۱ - ۲ - ۳ ۴ - ۵ - ٦ - ۷ - ۸ - ۹ - ۱۰ - ۱۱ -

(پښتو ):دبوترتاخچې اوندوګز کړی سری لچې

---

(۱) ګاتاها، ۳۸مخ .

(۲) دخلکوسندرې، ۵۸مخ .څرنګه چې دوړومشاعری د ذهنی‌ازمویني خواهم لری له همدې کبله پروفیسو رولی محمدخان سیال کاکړ په خپله د کیسیور ساله (پښتنی‌افکار) کی خوندی کړی دی .

هو ! په‌دې لاره کې که اوږده خبره نه وشي‌ښايي دپښتو اولسی ادب-داسې سندرې پاتې نشي‌چې دآريانا په لرغونو ادبياتو اوسرودونو کې يې اندول ونه موسو.

په‌اولسی ادب کې‌دتاريخي پېښو ، زړو نښو او ددې‌ادب‌دلرغوني‌جوړښت په‌رڼا کې زاته څرگنده شوه‌چې دپښتو اولسي ادب ډېر لرغوني او پخوانی دی اوسره له‌دې چې ليکل يې ډېر وروسته پيل شوي خو په هغو نمونوکې يې هم‌چې سينه په‌سينه او خوله په‌خوله له‌يوه نسل نه‌بل نسل ته ليږدېدلې‌داسې نمونې موندلای شوچې زرگونه کلونه عمرلري او زړې تاريخي پېښې،نښې اويابنې يې‌ساتلې‌دي چې‌په‌دې باب‌داليکنه‌مقدسوی‌او ابتدايي‌بڼه‌لري‌او هيله‌شته‌چې يو وخت په‌دې‌برخه کې‌اوږدې ،ژورې او کټورې خبرې ترسره شي خو د. پښتو داولسي ادب خبره ښه روښانه کړي او ددې ادب‌داو ږدې ماضي غبرګې ته‌مو ور ننباسي .

## ۲

## دا اثر

اوس موچې دپښتواولسی ادب په‌قدامت او لرغونتوب يو لنډاو ابتدايی بحث وکړ بايدووايو چې دا«غرنی سندرې» دپښتو داولسي ادب هغه‌سرغلرې دي چې تر اوسه دپښتيادخلکو ترمنځ خورې وريې وې د پښتو حساس او خواخوږي ليکوال ښېرنمل محمدعارف‌غروال داښکلې لړی‌ترې‌جوړه‌او په‌دې اثر کې يې خوندي کړه. داسندرې هم دپښتو داولسي ادب غوره نمونې دي او داسې ښېلگې‌هم پکې موندلای شوچې دپښتو داولسي ادب دلرغونتوب ښکارندويي او څرگندويي کوي چې لوستونکي به‌يې له‌لوستلو څخه خوند.

او اخلي او د پښتو داولسي ادب په مجموعو کې به یو ښه او کتور زیاتون راولي.

دا اثر څلور سره بېل څپرکي لري چې هر څپرکی یې خاص ډول سندرې، څېړې او نمونې یې وړ کوي، د هر څپرکی د سندرو خوند یې له بل نه بېل او دیوه ځانګړي صنف (ډول) سره اړه لري او په دې اساس یې د پښتو داولسی سندرو بېلا بېل ډولونه په غېږه کې خوندي دي چې دلته یې په هر څپرکي لنډ لنډ غږېږو:

لومړی څپرکی -لنډکی: -

ددې څپرکی سندرې او خبرې بې سابقې دي ځکه چې داد پښتو اولسي ادب یو داسې ډول دی چې تر دې وړاندې چا څېړنه نه ده پرې کړې او د څېړونکو پام نه و ورګرځېدلی داځکه چې د پښتو داولسي سندرو ډولونه خوراډېر دي او نویو نویو ډولونو ته یې د څېړونکو پام ورګرځېدل ځرګندوي چې ښایی ډېر نور ګلونه هم په دې بڼ کې واشي او د اولسي ادب ډېر نور نوي ډولونه هم د تحقیق او څېړنې ډګرته راووزي.

یو وخت چې استاد محمد ګل نوري د پښتو اولسي سندرو بېلابېل ډولونه خوندي کول غوښتل نو په «ملی سندرې» کې (د ۱۳۲۳ ش کال چاپ) یې یوازې «لنډۍ»، بابولالی او داتن نارې راوړې البته د کیسوناری یې تر دې وړاندې او وروسته په دوو ټوکو ملي هنداره کې خوندي کړې وې (د ۱۳۱۸-۱۳۲۰ ش کلو چاپ) او هم یې د متلو یوه مجموعه خپره کړې وه (د ۱۳۲۷ کال چاپ) د «پښتنی سندرې» په دوو ټوکونو کې پر لنډ یو، بابولالو او داتن پر نارو سربېره کاکړی غاړې او سروکي هم خوندي شول (د ۱۳۳۴ او ۱۳۳۰ کلو چاپ) (ددې اثر چاربیتې، غزلې، رباعی، بګتی، کیسې او داستانونه دشاعرانو سندرو نمونې دي چې دلته نه پرې غږېږو) «دخلکو سندرې» پر یادوشوو ډولونو دمینې سندرې، دوړومشاعرې، کیسی، دلویانو سندرې، فالونه،

دهو تکوناري ،ساندې او څېنې نور هم ور زيات کړل (د ۱۳۴۹ کال چاپ)؛ د کوټې پياوړي فولکلوريست پروفيسور رسيال کاکړ چغيان (د ۱۹۷۰ع کال چاپ) سلسلې ـ بر غازي اوسولې (د ۱۳۵۸ کال چاپ) هم په خپلو رسالو کې وخپرلې او هم په نورو آثارو کې د پښتو داولسي سندرو بېلابېل ډولونه خوندي او وخپرل شول؛ په دې لړ کې ښاغلي محمدعارف غروال «لنډکی» را منځ ته کړې او لومړی ځل يې داولسي ادب سينانو ته ور وپېژندلې .

لنډکی تر لنډۍ لا هم لنډې دي خو مور په لنډۍ کې وايو چې يو سر تړلی زنځيردی چې مطلب يې نيمګړی نه وی همدار از لنډکی هم يو داسې ځانګړې کړی ده چې خپل بشپړ مطلب په پوره فصاحت او ايجاز وړاندې کوي او همغه اغيز لري لکه په لنډۍ کې چې نغښتی وی او هغه دچاخبره :

« مار چې لنډی شي دوسره خولې لګوينه »

نو لنډۍ چې لنډکی شي همدا اثر پکې وينو .

د «غرنی سندرې» دليکوال دوينا له مخې لنډکی معمولاً دلنډيو په ملتياو يله کېږي خو داتې په وخت او د کيسه يي لنډکيو دويلو په مهال کې بيا په خاص وزم بې له دې چې لنډۍ ور سره مله شي په ځانګړی ډول يو ه په بله پسې ويله کېږي او داکار ښيي چې لنډکی يو مستقل ادبی ژانر (ډول) دی چې له لنډۍ سره دجوړښت له مخې څېنې ګډاړخونه لري او ګران ليکوال پوره خبرنه پرې کړې ده .

دزيبو او ختک په باب ويلې شوې لنډکی ښيي چې لنډکی له خپل لنډوالی سره ـ سره او پردې کيسې هم په خپله غېږه کې ځا يولای شي ځکه هرې لنډکی دکيسې بېل ـ بېل مطلب خوندي کړی او په نتيجه کې يې دکيسې ادامه را منځ

نه کېږده. ددې لنډ کيو لهجه داهم ښيي چې ختک دخو ان اصلي نومدی نه قوسی نوم، ځکه پښتانه عادت لري چې په خپل خيل کې په خپلو ځوانانو او نجونو دنورو قومونو نومونه ږدي او داپه ټولو پښتنوکې دوددی، همدارا ز داچې ختک دې ز يبو پری ايښې وي او دی دې له «چيغې» نه تښتيدلی وی د پښتني مينې له اصولو نه ليرې ده او داچې ز يبو يې دغره په بيخ او دی يې دغره په سر کې و ژلی وی ښايي چې دی يې د جنګ په دوران کې و ژلی او ز يبو يې ېر ته له ځانه سره را ګرځولې او په لاره کې و ژلې ده، دختک سېر انه له دې لنډ کی نه هم ښکاره ده :

« جار ختک جنګيږی ز يبوشنه شي و خاند ينه »

دا چې ز يبو و رته و ايي :

«مه تښته ختکه ما کار توس را اوړي دينه»

داهغه وخت دی چې چيغه لا نه ده پسې رارسېدلې او ختک په منډه منډه په لاره تلل غواړي خو دا يې داده کوي او و رته وا يي چې کار توس مې راوړي او د جنګ نه مه و يرېږه خو کله چې چيغه رارسېږي او د ی جنګ و رسره ګوي نو ز يبو يې په سېر انه و ياړي او راوي و ايي چې:

« جار ختک جنګيږی ز يبو شنه شي و خاند ينه»

په هر حال که د پيښې حقيقت هر څه وي خولنډ کيو دختک او ز يبود مينې ګيسه په ليکلې بڼه هم خوندي کړه او په دې باب يې د راتلونکو څېړنو له پاره لاره پر انستله . او هم ښکاري چې دا کيسه دنورو لنډکيو په ترڅ کې لا ښه بشپړه شوې او که پلټنه يې وشي ښايي د کيسې پو ره جر يان ترې تر لاسه شي .

زه له ښاغلی غرو ال څخه هيله کوم چې په لنډ کيو پسې ستې و غړي او د پښتو داو لسی ادب داخو ږې سندرې په دو مره پيمانه راټولې کړي چې په يو ه ځانګړې

رساله کې خوندي شي څو د اولسي ادب څېړونکو ته په دې لاره کې دڅېړلو نوي ورونه پرانيزي.

## دوهم څپرکی-سروکی او بيتونه:

د «غرنی سندرې» په دوهمه برخه کې سروکي او بيتونه راغونډ کړای شوي دی، که څه هم دسروکيو څېړل او راغونډول نوې خبره نه ده او تردې وړاندې په دېرو فولکلوري آثاروکې راغلي خو بيا هم ددې سروکيو نمونې نوې دي چې دپښتيا دغرونو له زړونو څخه يې قلمبند کړې او په اثر کې يې خوندي کړې دي . په دې سربېره چې نمونې يې نوې دي نوې خبرې هم ورسره شته، ځکه مونږ پخوا سروکي داتڼ په سروکو او عادي سروکو وېشلي وو خو دلته دتګ دوخت او دناستې دوخت له سروکوسره مخ کېږو چې دابل وېش دی او دپښتيا دسروکيو ځانګړنه (خصوصيت) ښيي .

ددې سروکيو په ترڅ کې دپښتياله «شاريو» (شاعريو) څخه هم ځينې بيتونه خوندي شوي خو ښاغلی ليکوال ورته متوجه دی او ددې برخې دپيل په کرښو کې يې يادونه کړې او دا موضوع يې روښانه کړې ده ؛ مونږ تردې وړاندې هم په سروکيو کې ځينې نمونې لرو چې دنورو اولسي سندرو پاتې شوني دي او دزمانې په تېر بدو يې داصلي سندرې نورې برخې هېرې شوې او يوازې همدا ئله برخه يې دنمونې په توګه راپاتې ده چې د پښتيا د شاريو داډو تې به هم يو وخت له سروکو سره ورکې او داپته به يې نه وي چې داد کوم اولسي شاعر داولسي سندرې پاتې شوني دي ځکه ټول سروکي داسې نه دي او داولسي ادب يوځانګړی او بېل ډول دی چې دآريايي لرغونو سرودونو په پله روان دی .

داسروکي هم تاريخي پېښې او نښې له ځانه سره لري او هم دپښتيا والې

لهجې ځانګړ نې په ځان کې ساتي او ددې له پاره چې هر پښتون پرې پوه شي ښاغلی مؤلف ځای په ځای محلي لغتونه پکې تشریح کړي هم دي .

**دریم څپر کی ـ داتڼ د میدان بیتونه :**

د «غزني سندرې» په دریم څپر کي کې داتڼ نارې او داتڼ سروکی دوا ړه راوړل شوي دي ؛اتڼ د پر لرغوني آریایي دوددی چې او س هم په مرکزي جنوبي او غربي پښتو نخواکې پاتې دي؛ یوازې په شرقي پښتونخواکې لږ لیدل کېږي ؛داتڼ نارې هم د پرې لرغونې او زړې ښې له ځانه سره لري او دلرغونو پښتنو اندود دسو ړته را رسوي .

که څه هم داتڼ په سندر وتر دې ورا ندې هم څه ناڅه خبر ې شوې خو په غزني سندرې کې راغلې داتڼ نارې ددې نار و په باب د نو وخبر نو زمینه برابروي او خصوصاً ددې نار و دجو ړښت په باب نوو خبر و ته زمو ږ پام اړوي .

په کوټه، کندهار، زابل، غزني، وردګو او ځینو نو ر و سیمو کې داتڼ نارې او ړدې او بشپړه بڼه لري دا نارې معمولاً دری مسرې یا څلو ر مسرې دي لکه :

په کوټه کې ثبتې شوې نارې :

الف ـ دری مسری :

خوله دې دا و موشیدو پېروې

پر نیمو شپو به د رسم ‌ ‌ ‌ ‌ پیر وی به دې تول کملکه روی (۱)

ب ـ څلو ر مسرې :

او ښانو غر غرې کړې ‌ ‌ ‌ ‌ ځوانا نو باندې و اړول بارونه

چې نـن سبا لـرینه ‌ ‌ ‌ ‌ هغو ځوانانو نه وکړه ودونه (۲)

---

(۱) فولکلوري سوغات، ۶۷مخ . (۲) همدا اثر، ۹۳مخ.

په کندهار کې ثبتې شوې ناری :

الف ـ دری مسری :

امرت په و نه تو ره کند هاره

زلفې مې او ږدې سوې — او ږدې زلفې به څو گرځم بې یاره (۱)

ب ـ څلور مسری :

دوې دي نجو نې دوې دي — د اتن نارې کوي سر ه تر لې دي

د یوې دخیال کمیس دی — دبلی زر غو نې په پښو جستې دی (۲)

په مقر کې لیکلی شوې نار ې :

الف ـ دری مسری :

گړ د کمیس په گړده نجلی جو ړ دی

تو له شپه یاري کړي — سهار لو ړه کوي چې زماو رو ړ دی (۳)

ب ـ څلو ر مسری :

ژ ا ړه نجلی ژ ا ړه — نجلی له دا خپله بخته ژ ا ړ ه

هلته دې خوارې شوه — چې خالو نه دې وهل پر خپله غاړه (۴)

په وردگو کې ضبطې شوې نارې :

الف ـ دری مسری :

داپو رې و و رې کلی مې دیار دی

یا رمې پکې نشته — زړ کی مې په کوگل کې ناکر ار دی (۵)

---

(۱) ملی سندرې، ۱۳۴ مخ. (۲) همدا اثر، ۱۴۰ مخ.

(۳) غلام محمد، د پښتو دود و نه، دفولکلو راو اد ب ټولنه ۱۳۵۲ ش، ۱۷۲ مخ. (۴) همدا اثر، ۲۱۷ مخ.

(۵) دخلکو سندرې، ۷۴ مخ.

ب ـ څلور مسری :

ـ مرم چکنه مرسـه‌داستارمان به ..ا خا و ر و ر ه و ړمه

ـ ولي به يې و ړمه چکـن په‌بازارده‌بر دی‌رابېو ړمه(۱)

خو د«غرنی سندرې» پښتياو الې داتې نارې‌معمولاً دوې مسری لري چې‌دېرې لږ د ری مسری او څلو رمسری نارې پکې مومو، خصوصاً ځينې داسې نارې هم پکې شته چې په‌نور و سيمو کې‌يې بشپړه بڼه دری مسر يزه او څلو رمسر يزه ده خو دلته يوه يادوې مسری ترې غورځول شوې او ددو و مسر يو په‌بڼه‌دو د شوې ده.

لکه د ا نـــا رې :

۱ ـ لونګ به‌پرې شنمه غوبل به د چتا نو پرې ترمه

۲ ـ تـکې ليلا تـکې لستونی را کوې لاس‌پکی‌تشته

۳ ـ ښکليه کندهـــاره څلو رڈې درو ازې ، څلو ر بازاره

چې‌په‌نورو سيمو کې داسې د ي :

۱ ـ ماول مر نجان به جو ړومه

لو نګ به په کرمه غوبل به‌د څوانانو پرې ترمه(۲)

۲ ) تر دې نجلی‌مکاره بله نشته

درو د په هغه‌غاره لستو نی ښو روی لا س پکی نشته (۳)

۳) برسی کندهاره چې څلو ر دې درو ازې څلو ر بازاره

زمايارد رکې‌بندی‌سو چې‌په پښو کې‌څو لنې ځنځير په‌غاره (۴)

---

(۱) همدا اثر، ۷۵مخ. (۲)ملی سندری، ۱۴۴مخ .

(۳)دخلکو سندرې ۷۴مخ. (۴) فو لکلو ری سو غات ،۵۲ مخ .

داتو پیر او کمښت دیوه ډیر ښه بحث لهپاره لاره هواروی او هغه داچې:
آیا دپښتیا داتې نارې ددې نارو لوړنی او ابتدایي نمونې دیچېپه کندهار او نورو سیمو کېیې بیاتکاملي ښه موندلې او بشپړې شوې دي ؟

او که نهداناري اساساً په کندهار او نورو سیمو کې رامنځ ته شوې او بیایې دمکانی لیرې دله اسله ضایعات ور کړي او تر پښتیا پورې درسېدو په لاره کې ېمګړې شوې دي ؟

که څه هم ظاهراً داتې دنارو جوړښت چېپه کندهارۍ ښه کېردیف،قافیه او سم شعری تنظیم او اوږدو ن لری ښرگندوی چې داناري لوړی په کندهار او نورو سیمو کې جوړې شوې او پښتیاته یې دلیرې دېدلو په وخت کې ضایعات ور کړي او ځینې مسرۍ یې لوېدلې دي خو بیاهم دبحث لهپاره ښه موضوع دهچې پهراتلونکو څیړنو کېبهښه تراسپینه شي .
څلوړم څپرکی ــ ښځینه او لسي سندرې :

---

داد«غرنی سندرې » یو جامع عنوان دی چې ظاهراًبایدهغه ټولې سندرې ترې لاندې راوړلې شی چې ښځمنو رامنځ ته کړې او ویلې خو په متن کې یوازې ښځینه سرو کی، دښځولهخولې ویل شوی بیتونه او دښځولهخو او یل کېدونکې دښادی سندرې راغلې دي .

پهدې برخه کې ډېرداسې سرو کي او بیتونه هم شته چې دښځولهخوانه دي ویل شوي بلکه ښځوته دنارینه ؤ لهخوا په خطابی ډول ویل شوي لکه:

شنهشنه دېخالونه لیلا وی ډېر پهنندانوو ور کیومه کوهظلمونهلیلا
دگلو باغه بوی دې ځینه مسته لیلاپهبازارځي گل بویوینه

داډول نمونې ځای پهځای پکې موندلې کېږي خو څرگنده نهده چې ښاغلي لیکوال پهڅه دلیل پهښځینه سندرو کې راوړې دي .

همدارازددې برخې سروکي او بيتونه بايد په دوهم څپرکي کې راغلي وای او دلته يوازې دښادی سندرو ته ځای ورکړی شوی وای . په هرصورت بياهم بې ځايه‌نه‌دي او دسوادو په‌توګه زيات ارځښت لري چې داولسي ادب څېړونکو ته‌به په راتلونکې کې چمتوشوي مواد په‌لاس ورکوي.

په همدې توګه ددې برخې دښادی له‌سندروسره‌هم سروکي اولنډۍ ګډ راوړل شوي چې بايد يوله‌بله بېل راغلي وای .

په‌مجموعي توګه د«غزنی سندرې» محتويات داولسي ادب‌هغه اصيلې‌نمونې دي چې‌په خپله غزنی ښه په‌امانتداری راغونډې شوې چې‌داولسي‌ادب دژورو څېړنو په‌وخت کې ديوه اصيل‌او دخلکو دباوړي سندپه توګه استفاده ترې کېدای شي او دراتلونکو ادبي ، تاريخي ،دوګړپوهنې او ټولنپوهنې د څېړنو له‌پاره ښه‌کاروړکولای شي.

زه په‌خپل وارګران عمروال ته‌ددې اثر په ليکلوسره مبارکي ورکوم او دزياتو ملي خدمتونو په‌ترسره کولوکې يې بري او کاميابي له‌لوی‌خدای څخه غواړم !

په ژوند اوقلم يې‌دې برکت وي !

په مينه

حبيب‌الله رفيع

# غرنۍ سندرې

هغه مهال چې لا دنړۍ پر مخ دډیرو اوسنیو اولسونو قدماوو دهستۍ قدم نه وُ ایښی، هغه وخت چې لا دنړۍ دډیرو اوسنیو ژبو دجهان پر مخ ویونکی نه درلودل؛ هغه مهال چې لا داوسنی وخت ځینو موجودو ژبو ادبیات نه پیژندل، دتاریخي اوو پاړلی افغانستان (اوسنی) ددنګو غرو په لمنو، دبهاندوو اوو مستو سیندونو پر غاړو، په شنو او ښیرازو ځلګو او پراخه دښتو کې دداسي ترانو ازانګې اوریدل کیدې، چې پښتنو شپونکیو به دخپلو شپیلیو په نغمو کې بوغولې او پیغلو به په شور او زوږ داتڼ (۱) پر میدانو نو بللی، او له تاراکګرو سره به دجنګ پر ډګرونو دبري ډیره ښه وسیله هم دغه سندرې وې .

---

(۱) اتڼ او ملی نڅا زموږ د کلتور له مئلو توکونو څخه یو توک دی چې زموږ دقبایلو له اجتماعي ژوند سره یې تړلی یون کړی دی. د شتو تاریخي اسنادو له مخې به آریایي ټولنو کې داتڼ حرکت په وېدي زمانه کې لګیږي دهغې زماني سرودونه تصریح کوي چې: دغه مهال به ښځو او نرو اتڼ کاوه ځوانانو به هغې درلودې، دوی به خپلې خټې غوړولې په صحرایي ګلانو به یې ځانونه ښایسته کول، او په سندرو به یې داتڼ میدانونه تودول .

دویدي سرو دونو په لسم کتاب ۷۶ سرود، اتمه فقره کې یوه جمله داسې ده: «دیري دوړې او ګردونه به دهغو کسانو له پښو پورته کیدل، چې اتڼ به یې کاوه» (دافغانستان پخوانی تاریخ ج ۱ ص ۱۶۰، د ، تاریخ ټولنه، ۱۳۳۴ ش کال کابل) .

دغو سندرو له زرگونو کلونو (۲) راپدیخوا پښتنی بزم او رزم ته خوند رنګ ورکړی دی ، دغه سندرې زموږ دلورو غرو ، مستواو ناایلوسیند ونو ، شنو ځنګلو ، ناپایه بید یاوو ، صحرایي ګلانو ، د وچو بیابانو له ځوزانو او زموږ د خلکو او سحیط د ځانګړو کلتوري مشخصاتو څخه په الهام اخیستنه رامنځ ته شوې ، په غرو ، درو ، کلیو او بانډو کې خورې شوې ، ښځو او نرو ، پیغلو او زلمو زده کړي ، دخوښیو او ښادیو محافل ، دتورې ، ننګ او دملي نڅامیدانونه یې پرې تاوده ساتلی دي .

دغه ترانی دغو پوندهوو ، شپنو ، او ښپنو اود غرو او درو په پهلمنو کی رالویوشو و ښځواو نرو په روایي شکل سینه په سینه وروستیو نسلونو ته

---

(۲) د پښتو داولسی ادب محققین ، دپښتو شفاهی ادب دموجودو سندرو تاریخ ډیرلرغونی بولي ، او په دغو سندرو کی په خصوصی ډول لنډیو ته دتاریخی قدامت په لحاظ په ډیر ارزښت قایلیږي ، جونز انو لمسن او پروفیسور محمدنواز طایر په دې برخه کی په یوه خوله دي ، او وایي چی دپښتو لنډیو تاریخ دریګوید دسرودونو له زمانی (۹۰۰-۱۰۰۰ ق م) سره نښتون لري (سپوږمیه کړنګ وهه راخیژه ؛ جونز انو لمسن ص ۲-۹ ، د ۱۹۶۹ ع کال د پیښور چاپ ؛ روهی ادب ج ۱ ص ۹۲ ، پروفیسور محمدنواز طایر - پښتو اکیډیمی د ۱۹۷۸ ع کال دپیښور چاپ ). د کابل مجلی د ۱۳۵۹ کال د ۳ ګڼی په ۴۳ مخ کی هم دلورې نظر یې ملاتړ موندل کیږي .

څیړندوی دوست په خپلو څیړنو کی د پښتو آهنګونو لرغونتیا او ستایی دورې ته رسولې ده ، نوموړی محقق له اوستایی یشتونو او ګاتونو سره د پښتو د اولسی سندرو ځینی نمونی د تقطیع په لحاظ مقایسه کړې دي .

( دپښتو داولسی ادب لاری ، ص ۱۲۸-۱۴۲ ) .

ليږدولی دي . که څه هم د ليږد په دغه زمانه کې به دغو سندرو دحاملينو او راوپانو ددېرښت له امله لفظي او بعضاً شکلي تبديلات او تغييرات منلي وي خو اکثرو سندرو خپل اصالت له لاسه نه دی ورکړی .

کوم سندرې او ترانې چې اوس موږ د پښتونخوا په غرو او دروکې دخلکو له خولو ليکو او را ټولووزموږ د ملي فرهنګ داصيلو مرغلرو په څېر به ذهيواد دملي ، کلتوري او اجتماعي تاريخ په کښلوکی د اساسی موادو ارزښت ولري، نو ځکه د دغو سندرو او نورو ټولو کلتوري او فرهنګي پديدو راټولول خوندي کول ، او خپرول د ټولو ځوانو څېړونکو اوزموږ د کلتوري او فرهنګي مؤسسوملي او علمي وظيفه ده.

دهمدې ضرورت پربنا زموږ ځوان ليکوال او شاعر څېړنمل محمدعارف غروال دوپارلې پښتيا دآسمان څکو غرونو په لمنوکې دشنودرو دخلکو له خولو ددغوملي او ولسي ترانو ځينې نمونې راټولې کړی، او د«غرنی سندری» په نامه يې په دې مجموعه کې سره رانغښتې،او دګلو يو ښکلي غنچه يې ځينې جوړه کړې،چې خوږ ،وږم يې زموږ دملي فرهنګ دهرليوال دماغ تازه کوي. دپښتنی کلتورپانې ښکلې کوي ، او ځلاوربخښي .

* * *

دسندرو په دغه مجموعه کې پراکې،سروکې او بيتونه ،داتڼ دميدان بيتونه او ښځينه اولسي ادبيات له ځنيو تحليلونوسره راوړل شوي دي.

زه د دغوسندرو په هره څانګه له بيلابيلو خواو وداسې نه غيږم ،چې زما خبرې دکتاب له محتوياتوسره تکرار رامنځ ته نه کړي،او له بله پلوه له لوستونکې سره دموضوع په نسبت روښانتيا کې سرسته وکړي .

«۱»

# پېژاندګلوی

زمونږ دبډای او شتمن فولکلور د غوسندرو هم لکه نورو اولسي ترانو په کلونو کلونو د منډهير او شير پنځې د هسکو غرونو په لمنو، د کرسي او شلو - زان په شنو باغونو او دخوست د ښکلي سيمي په ځينو درو او سردرو کې ازانګی کړی، دا هن زلميان يې مست کړی، او د تنګ تکو رمجلسونو ته يې دنغمو په خوږ ترنګ کې نوی رنګ ورېخښلی دی .

د پښتني فولکلور خيړونکی له دغوسندرو څخه تر ډيره مهاله نه وو خبر او زمونږ د پښتيا والو پښتنو په سينو کې پرتی وی. کله چې ښاغلي ليکوال خيړنمل محمدعارف غروال په ۱۳۵۰ ش کال د دغوسندرو ځينې نمونې د کابل مجلې په ځينو ګڼو(۳) کې خپرې کړی ، او په دې توګه يې د پښتني فولکلور پرسينه والو ددې نوو سندرو زيری ورکړ ، نوهماغه ؤ ، چې زمونږ د اولسي سندرو په روښان او ځلاند آسمان کې يو بل تت ستوری هم روښنايي پيدا کړه ، او وليدل شو . کله چې نوموړی غروال دغه سندري خپرې کړی، بيا يې په اولس کې نورلټون پسې وکړ ، ځينې نوری دغه ډول سندری يې هم وميندی(۴) او بيا يې ټولې دغه راټولې کړې سندری سره را ټولې کړې او دغرنۍ سندرې د کتاب په لوسرۍ بر خه کې يې د يوه ارزښتمن سوغات په توګه د پښتني ملي سندرو

---

(۳) د کابل مجلې د ۱۳۵۰ ش کال د ۵ ګڼې په ۷۰-۷۶ مخونو کې او د ۸ ګڼې په ۳۶-۵۴ مخونو کې ددغو سندرو په باب مطالب او نمونې يې هم ميندل کيږي.

(۴) دزيری جريده، نوی سوندل شوی لنډ کی، محمدعارف غروال ، ۱۶ ګڼه ، ۱۳۵۵ ش کال .

علاقمند انو ته ور اندي کړي.

د دغو سندرو په باب دخپرنمل غرو ال تر خرګند و نو و روسته د دغو سند-رونو مځای په فولکلوري خپر نو کې و ليدل شو .

۱— خپر ندوی دوست په خپل اثر «د پښتو داو لسي ادب لا رې » کې په دې سندرو يو ه يو مخيز ه خپر نه خپره کړ ه، او د پښتو د او لسي آهنګو نو دلر غو نتيا په بحث کې يې د دغو سندرو خو نمو نې د ز ړ و او ستا يې متو نو له تو تو سره دمقا يسي په منظو ر تقطيع کړې(٥).

۲— ښاغلي محقق محترم حبيب الله رفيع د «فو لکلو ری سند رې» نو مې اثر په مقدمه(٦)او ۳/ز لمي هيو امل دسر و کې نو مې فو لکلو ري اثر په مقدمه کې د دغو سندرو په تشه يا د و نه اکتفا کړی ده (۷) له دې سر بيره مې د چا په ليکنو

---

(٥) و ګو رئ ء! د پښتو داولسي ادب لارې ، ص ۱ ۰ ۱ ،۳۹، پښتو تو لنه ۱۳۵٦، ش کال چاپ.

(٦) فـو لکـلو ری سندری ، د پـر و فيسو رسيال کـا کـړ ، دمحتـر م ر فيـع مقدمه ، دلـې د دې خبراې کـو ل ضـر و رې ګنـم چې : نـو مو ړې مقد مـه له کتـا به و غو ر څو ل شو ه، دغه مقدمه د محمد هـو تک د ملي سيمينار د علمي کميتې ، په غو ښتنه ليکل شوی و ه په علمي کميټه کې دوخت د پښتو تو لنی د ښاغلي ر ئيس خپر و ندوی محمدصديق ر و هي تر مشرۍ لاندي: لوی استاد پو هاند عبدالحي حبيبي، استادبينوا ،محترم استاد پوهاند ميرحسين شاه او ز لمي هيو ادمل شامل و و. همد غه مقدمه د کتا ب په ځينو نسخو او د زيری جر يدی د ۱۳۵۷ کال په ۳ ګنه کې چاپ شوی ده.

(۷)— و ګو رئ ء سر و کې، د ښاغلي عبدالکر يم پتنګ تو لو نه، د زلمي هيو امل مقدمه، دوهم مخ ، د ۱۳۵۸ ش کال چاپ .

کې د دغو سندرو په باب څه نه دي ليدلي، او که چاپې يادو نه کړي وي، او ز ه نه نه وم پر پيښ شوي ، نو د نه يادو نی له امله به ښاغلي ليکوالان ماته بخښنه و کړي د دې سندرو له ببيلو گر افيکي يادو نی و ر و سته ز ه خپله څېړ نه د سندرو له نامه پيلو م :

دغه سندري محتر م څېړ نمل غر و ال له ابتداڅخه دلنډ کې په نامه را پيژ ندلی دي، و ر و ستيو څېړ و نکو هم دلنډ کيو په نامه يادي کړې دي ، خو و ر و سته څر گنده شوه ، چې دغه نوم پخپله غر و ال و ر جو ړ کړی دی ، او د گر انی پښتيا د هغو سيمو خلك— چې دغه سندري پکې ويلي کيږي او ياشته — دغه سندري د «پړ ا کې سو ري، بندي»(۸۷) او نو ر و نو مو نو يادوي .

دغو سندر و ته د نامه په انتخاب کې د ښاغلي غر و ال استدلال دادی : « . . . خو داچې دا شعر يو ازې يو ه څو ر لس سيلا بيز ه مسري ده، نو ځکه دلنډ کې نو م ورته غو ر ه و بلل شو » .

که څه هم دلنډ کې نوم په فو رمي لحاظ بد نه ښکاري. پرغو ړ و ښه لگيږي، آهنگ يې ښه دی او د ښاغلي محتر م غر و ال د شاعر انه ذو ق ښکار ندو يې هم کوي. خو داچې يوي فو لکلو ري پديدی او يا هم يو ه کلتو ري اصل ته مو ږ په او لس کې د خلکو له خو اخو ښ کړی نو م و لر و . نو دی ته به ز ما په فکر ا ړ نه شو ، چې خپل جو ړ کړي شاعر انه نو م دې و ر باندي کښيږ دو . ځکه هغه نو م چې خلکو غو ر ه کړی وی، هغه کلتو ري او ملي اصالت لري، او له دغه ډو ل نوی نامه سر ه د اولس بيا له سر ه اشنايي گر انه ده . فو لکلو ر ز مو ږ د او لس ډير ه قيمتي ملي او کلتو ري شتمني ده

(۸) دغه سندري، منگل پښتانه «بندي» بولي . د څيړ نمل علي محمد منگل په منند، د پښتيا په ځينو نو ر و سيمو کې يې «بچکی» هم بو لي .

چې موږ یې په ډیره امانت داری له خپلو ټولو کمي او کیفي خصوصیاتو سره په خپله اصلي بڼه را ټول او، هیڅ ډول لفظي او شکلي تغییر به نه پکې راولو او لکه څنګه چې دی هسې به یې خوندي کوو، خپروو، او خپلې او بډې او پلنې کلتوري، تاریخي او ملي خپرنې به پرې پیلوو.

له ګران او رورغروال سره په دې برخه کې زما دعدم توافق بل دلیل دادی، چې بنایي موږ په خپلو اولسی سندرو کې داسې سندرې ډیرې ولرو، چې یو شو رلس سیلابیزه مسرې او یا تر دې کمه یا زیاته وي، خو موږ دغه ډول سندرو ته په هیڅ توګه له نورو سندرو سره په نښتون نشو قایلیدای، او داڅکه چې د هجاډیر والی، لږوالی او یا یو شانې والی، د نوم په ایښودو کې اغیزه نه لري، نو په همدې اساس هرې سندرې ته چې رامنځ ته کوونکي او لس کوم نوم ایښې وي، هغه به موږ ته دمنلو او احترام وړ وي.

د دغو سندرو پر موضوعي ویشخېړنمل غروال ډیرې خبرې کړي دي، نو څکه د پر نسیپ له مخې زه ددې موضوع له څېړنې تیریږم خو څه چې ددغو سندرو په بلب ویل غواړم دادي چې: ۱/ پرا کې له کومو اولسي سندرو څخه اغیز منې دي؟ او له دغه ډول سندرو سره یې دتشابه اړخونه کوم دي؟ ۲/دو ینګ مواردیی کوم دي؟ ۳/ فورمي جوړښت یې څه ډول دی؟

۱ـ زما دڅېړنې له مخې د دغو سندرو زیاتې نمونې، لکه د پښتو نورې اولسي سندرې په خپل ټاکلي فورم د اوسخلکـو خوـی کړي، ولهنورو اولسي سندرو څخه تر یوه حده اغیزمنې نه دي، بلکه په طبیعي شکل رامنځ ته شوي دي، خو څـني سندرې د سې هم پکې شته، چې اصل یې پالنـه ی دې، او یا هم سروکی، او دا څرګنده ښکاروي، چې دغو سندرو له سرو کو او لنډیو څخه مواد اخیستي، او د

او لس له خو ادديِ سندرِ و له پر ربه ضغ شوی چو كانه كی تری یرِ اكی یاسو رِيِ یابندی جو رِشويِ دني، لکه دا لندی:

«عالمه يو تربل ځار ييږی دنیافانی ده سیمانه ديِ صوږ دتونه»

داسی پر اکه شوی ده:« دادنیافانی ده سیمانه دي صو ر تو نه »

یادالندی:«له زنگنودیِ سرز اهسك کړه بی غمه خدای دی بنده تل په غم کی وینه

پـه دی ډول «سوره» شويِ ده« جار ي غمه خدای دی بنده تل په غم کی و ینه »

هغه پر اکی چی اصل یی سرو کی دی ، ځینی نمو نی يې لاندی راو ړلی کیږی:

«رب دیِ لیو نی کړه چیِ په غر و دی و اړو مه * بدرو په گل مینی * بد رو »

په پر اکو کی داسی او ښتی دی:

« رب دی لیو نی کړه چیِ په غر ولاړ شی مینه»

ددیِ سر و کی: « چر با نگ دی

*پاخیږه لالیه خوب به بیاو کړی مینه» (۱۰)

بنه داسی او ښتی، او «سو ره» ځنی جو ړه شو يِ ده . :

«پاخیږه له خو به،خوب به بیاو کړی مینه».

---

(۹) وگو ری: سر و کی ص۳۳، ۱۰۲ نو سره سرو کی .

(۱۰) وگو ری: پښتنی سندری ج۲ص۲۲ ، ۲۳۵ ش کال چاپ، پښتو ټولنه او، دابا ید و و یل شي چی په دی کتاب کی دنو مو ړی سرو کی مسری غلطی سره بیلی شوی دي، او په ديِ بنه ضبط دی:«چر بانگ دی پاخیږه لالیه * خوب به بیاو کړی مینه» داخبره هم دهیر و لو نه ده ، چی د اولسی سندری نو مي اثر په دو هم ټو ك (ناچاپ) کی د شمس علی نومی او لسي شاعر یوه پنځه بیتیزه سندره ضبط ده ، چی سریی همدالو ړ سرو کی دی.

دابل سر و کی: «ستالیو نی سینه‌سی خوب ته‌ته‌پر یږ دیته *
لږ خبر سی واخله‌جانانه» (۱۱).

داسی پر اکه شوې ده: « ستا لیو نی سینه سی خوب کی ځو رو ینه » .

پو رتنی مثال ددی ښکارو ند یی کوی‌چی ځینی پر اکی له سرو کو او لنډیو څخه په‌څه‌حذف و تعدیل‌جو ړی شوې دی،اوله سر و کو او لنډیو سره یې دشباهت په مو زدکی زمارایه له ښاغلی مؤ اف‌څخه بیله ده، محترم مؤلف په‌دې‌باب کښلی دي: «لنډ کی که‌له‌یوې‌خو اله لنډی سره نژ دیو الی لری نو له‌بلی خو اله سر و کی سره هم ور ته‌ده، له‌لنډی سر ه خوپه‌دې نژ دې ده، چې دلنډی له‌دو همی مسری نه‌یې یو ازې یو سیلاب ز یات دی، او نو ر نو په‌و زن او آهنګ کی‌و ږسره یو شان دی،او لـه سر و کی سره ځکه و رته‌و الی لری،چی داهم لکه سر و کی غو نډی معمو لاً له‌لنډی نه‌و روسته و یله کیږی» (۱۲)

په‌دې لو ړه اقتباسی تو ته کې که‌له‌شباهت څخه مقصدفو رسی شباهت وی،نو داخبره ځکه سمه نه ده، ، چی : لنډی خو یو داسی شعری فو رم دی ، چی دوی مسری لری، چی یوه یې لنډه نه‌سیلابیزه،او بله‌یې اوږده دیارلس سیلابـیزه وي او سر و کی هم دوه پارکیز، دری پارکیز، څلو رپارکـیز ، او پنځه پا ږکیز او نو ردی، چی‌دپارکو هجا یی سیستم یې‌ډیر مختلف دی .

حال داچی پر اکه یو ځانته شعری فو رم دی ،چی‌یوه څو رلس هیجایی مسری وي ، او له لنډ یو اوسرو کو سره‌هم دپا رکـو جو ړښت او هـم د سیلاییك سیستم له مخی تو پیر لری ، داچی ځینی پر اکـی له سر و کـنو او لنډ یو څخه

---

(۱۱) سر و کی،ص۱۶ ، ۱۷۹ نو سر ه‌سر و کی. دغه‌سر و کی در ادیو افغانستان دمو سیقی په‌ارشیف کی‌شته، خو دنغمو کاروان مؤ لف نه دی اخیستی .

(۱۲) غر نی سندرې ،ص۶ (قلمی).

جوړې شوې دي ، ددې معنی نه لري چې موږ دې پراکې له لنډيو او سرو کو سره ورته و بولو ، او دا ځکه چې اساساً ددغو سندرو فورم په اصلي شکل د يوې ځانګړې سندرې (صنف) په توګه په اولس کې شته او خلکو ډيری دغه ډول سندری په دې فورم جوړې کړي دي .

که چيرې د محترم مؤلف مقصد له شباهت څخه موضوعي ورته والی وي نو دا خبره يو څه سمه ايسي ، ځکه د پښتو د اولسي سندرو موضوعي اړخ تر زياته حده سره يو دی. همدا راز د همدغې لوړې اقتباس تو تې په پای کې راغلي دي چې :لنډ کې لکه سرو کې غوندې له لنډۍ نه و روسته ويل کيږي . که زه نه وم سهو شوی او دغه برخه مې له کتابه سمه رانقل کړې وي ، نو زما دخوا پره ملګرې غږوال له دې خبرې سره به هيڅوک موافقت و نه کړي، ځکه دا خبره ښرګنده ده، چې لنډۍ تر سرو کې و روسته ويل کيږي، نه سرو کې له لنډۍ و روسته، دسندرې په منځ کې دمسر يو تر ويلو وروسته سربيا و رسره تکرار راځي ،او که دغه خبره چې غږوال کړې سمه وبولو، نو بيا په آره توګه دسرو کې مفهوم خطا دی.

۲- پراکې داتڼ په ميدانو نو ،دمحلي تنګ تکور په مجالسو او نورو موارد و کې داسې ويلې کيږي ،چې په هر حال کې يې خپل ځانګړی موقعيت حفظ دی. او داتڼ په مستۍ او دتنګ تکور دمحافلو په څو بڼاو خرو ښې کې يې اغيزد يادونې وړ دی.

خو محترم خير وندوی دوست د خپل مغتنم اثر «دپښتو داولسي ادب لاری» په ۱۰۱ مخ کې دپراکو داستعمال او وينګ دموارد و په باب کښلي دي:

«لنډ کې ځانګړې نه ويل کيږي، بلکه دسرو کو په شان دلنډيو سره ويل کيږي دسرو کو سره يې تو پير دادی، چې دايو ازې دلنډيو په پای کې ويل کيږي»

ددې لوړ عبارت له لومړې جملې څخه لوستونکی داسې نتيجه اخلي ، چې

گونډي پړاکي يا په اصطلاح لنډ کي د سرو کو په خير د لنډيو په وسيله بشپړ-
يږي، يعنې دا چې دويلو په مهال کي پړاکه د سر په توګه ويل کيږي او بيا بيا
لنډۍ وراچول کيږي، او بيا پړاکه د سر په توګه ورسره تاويږي، چې دغه
مطالب بيا د بناغلي ليکوال د همدغه اقتباس تو کر له وروستي جملي سره چې
وايي: «د ايوازي د لنډيو په پاي کي ويل کيږي» اوڅ نه لګوي. بنايي د لنډيو له
پاي څخه د بناغلي محترم ليکوال مراد تر لنډيو وروسته وي، چې دا خبره تر يوې
اندازې سمه ايسي د ساز او سرود په محافلو کي د پړاکي د وينګ موارد
دادي :

که ځه نه وم خطا شوی، ملچې د خپلو پښتيا والو دوستانو په مرسته د پښتيا
د سيمې د محلي تنګ ټکو ر مخافل ليدلي، او يلمې يې ثبت شوي محلي سازونه
اروېدلي، د دغو پار چو له مخې د پړاکي و يتګ ځانته مستقله بڼه لري، او سندر-
غاړي يې د خپل ساز و سرود د سر و تال دارولو په مهال کي په مستقل شکل
وايي، کله چې سندر غاړی مقام يا چار بيته يا بدله و وايي. نو بيا د ساز دارولو په
خاطر پړاکي پړې راسوري کړي او پر له پسې څو پړاکي و وايي، بيا بدله يا
چار بيته پرې راسوره کړي، يا هم د يرڅله سندرغاړي د يوې غزنى سندرې په
منځ کي — چې سندره يې د لنډيو په وسيله بشپړه کړي وي — يوه نيمه پړاکه
د لنډيو په وسيله د سندرې تر بشپړ شوي بندو روسته و ايي . زما د دې خبرې
ملاتړ د دغو کاروان په ۲۷ مخ کي هم ميندل کيږي. په دغه کتاب کي د پښتيا
د محلي سندرو يوه پارچه ثبت شوې، چې همدغه ثبته شوې بڼه يې زما لوړه ادعا
تائيد وي (۱۳) .

---

(۱۳) په دغه کتاب کي پړاکي سمې نه دي ضبط شوي .

۳- څنګه چې څرګنده‌ده، د پړ اکو جوړښت یو مسریز دی، او کومې پړ ا-
کې چې اوس د پښتو د اولسي ادب د څیړونکو په واك کې دي، د تولو فورمي
جوړښت یوه څورلس سیلا بیزه یوه مسري ده ، خو څیړندوی دوست ، د پښتو
داولسي ادب لارې په ۱۰۱ مخ کې د (لنډه کیو) د فورمي جوړښت په باب کاږي:
«. . . دوه اړه مصراع یې په یوه عروض (۸ څپې) وي ، دلنډه یو په شان په
غبرګ یز و پای ته رسیږي، او دوه اړه مصراع یې په یوه قافیه نه وي. . . . . ».
د محترم څیړندوی دوست د څیړنې له مخې پړ اکي دوې مسرۍ لري ، چې
هره مسرۍ یې ۸ څپې او یوله بله هم قافیه نه وي ،ددوی د هیجایي شننې له مخې باید
هره پړ اکه شپاړس سیلابه وي، خو ماچې کومې پړ اکي لیدلي هره‌یوه‌یې یوه
مسرۍ ده، چې څورلس سیلابه لري، لکه دالاندې پړاکې :

غونډه سنډه زه یم یارسي بــله لټوینه
تیته یې ږلی کړه‌ماز یګر یې او روینه
جاردره‌ګي خالي دی، جونه‌غروته‌تللي دینه
ته په خندا لاړې زه دې‌هیره کړم مینه

د دغو لوړواو نورو پړاکو دیوی څورلس سیلابیزی‌مسرۍ په‌منځ کې‌خو ماد پاړ کو
د بیلتون‌اودمه ځای‌څرګ ونه‌ایستای‌شو. (ښایي‌ځینې‌ښاغلي‌یې‌پاړ کې‌بیل کړای‌شي).
ددې بحث په‌نتیجه کې و یلای شو ،چې: پړ اکې د پښتو داولسي ادب په
سند روکې ډ یر لرغوني فورم دی ؛ او د پښتو د اولسي ادب محققین یې
لرغونتیا ته‌قایل دی . دغه‌سندرې د پښتیا په غرو نو کې پیداشوې او و یونکو
یې د هرې موضوع په‌باب د غه ډول سندرې و یلي دي . دغه سندرې زیږو د
یبو زلي، خو سیرنی اولس‌دنرو او ښځو دناپایه رنځونو او کړ او و نو ښکار-

ندو یی کوی ،او زمو ږ دملی کلتو ر مشخصات تری څرگندیږی ، دموضوع د وضاحت له پاره لاندی پر اکی ولو لیء!

زه لکه بلبل په فریاد وشپی تېرومه
سره لاسونه جگ کړه چی بنگړ یوشرنگ دی شینه
چار د للمی گله په دیدن دې پوهومه
جارپه ننگ مینه وو رکیه غیږی ته درځمه

دغیر نمل غرو ال هغه دپښتو داولسی ادب څیړ و نکو ته ددې نوی سوغات دوړ اندی کولو له امله دقدر وړ ده .

« ۲ »

## سرو کی او بیتو نه

د غر نی سندری د کتاب په دو همه بر خه کی سر و کی او بیتو نه ر او ړل شوی دی. دغو او لسی سندرو ته ځینی پښتانه سر و کی ،او ځینی نیمکی و ایی خو دپښتیا په منگلو کی یی پام بو لی (۱۴) د کتاب په دی بر خه کی له سر و کو سره دبیتو نو داحتیاطی قید ر او ړل دښاغلی لیکوال په دقت او علمی احتیاط دلالت

---

(۱۴) و گو رئ ! او لسی پو هه، دښاغلی علی محمدمنگل ص۳۷،د۱۳۵۶ ش کال چاپ،دادب او فو لکلو رتو لنه، کابل مجله د. ۱۳۵۰ کال ۱ گڼه،ص ۷۱ د پښتیا مجله د۱۳۵۹ ش کال ۳ گڼه ص ۲۸،۳۹ په دغو د ریو سر و لیکنو کی ښاغلی منگل داتڼ ناری،دنکلو نو ناری او د ښادی بدلی په سر و کو ر اگډ ې کړې دی، ددر یو اړو لیکنو ځینی سندری یی تکر اری هم دی ، د گډون مثال یی د کابل مجلی د۳ ۷ مخ لو مړی سر و کی د اتڼ ناره ده،چی د«غر نی سندری » په بیتو نو کی ر اغلی د ه او نو ر . . .

کوي، او دا ځکه چې ډېر ځله ، دسر وکو په داسې مجموعو کې داصلي سر وکو تر منځ د اولسي بدلو، چاربیتو، بګتیو او لوبو سر و نه هم ګډ شوي وي ، د غر و ال په راتولو کړ وسر وکو کې هم د ا ولسي خصوصي سندر و سر و نه د یوه یوه بیت په توګه را غلي دي.

زموږ پیاوړي لیکوال او د پښتو داولسي ادب نومیالی محقق حبیب الله رفیع اووه کاله دمخه لومړي ځل دغي موضوع ته متوجه شو(۱۵)، او په خپله یوه لیکنه کې یې وکښل چې سر وکې دچار بیتو ،بګتیو ،لوبو ، او بدلو پاتې شونې دي، چې دزماني په تیر یدو سره ددغو سندر و بندو نه له حاملینو هېر شوي، او یو ازې دهغو «سر » دخلکو په حافظه کې خوندي پاتې دي. او بیادغه سر و- کې ځنې جوړ شوي دي.

دوي دمثال له پاره دمحمد دین تیلي (۱۳۰۰ هحدود) ددې مستی غزلې :

«ګل دي په زلفو باندې قطار دی
دوا ړه زلفان دي محبو باګل دانا ردی توبه»

مثال و ړ کړی دی، چې اوس ور څخه سر وکې جوړ شوي دي. ښاغلي محقق په دې برخه کې په حقه دي ځکه چې دغه لوړ «سر» دیوې شپږبیتیزې مقامي غزلې «سر» دی، چې ټوله غزله یې دپښتو دمقامي غزلو په زیاتر ومنتخبو مجموعو کې راغلې ده خو همدغه غزله دراډیو افغانستان دموسیقۍ په ارشیف کې د سر وکې په بڼه خوندي ده، او دنغمو کاروان مؤلف هم د سروکې په بڼه ضبط کړې ده(۱۷)

---

(۱۵) وګورئ ! زیري د ۱۳۵۳ ش کال .

(۱۶) وګورئ ! بهار ګلشن ،ص۸،دلاهو ر دنو لکشو ر چاپ .

(۱۷) دنغمو کاروان ، ص۸۷.

دمحترم رفیع له‌دې نظر سره زه‌هم‌ملگری یم،چی د پښتو په‌دغواولسی سندروکی ځینې سر وکی داولسی شاعرانو دسندرو د« سر »له پاټو څخه ګڼلای شو خودتیولو سر وکو په‌باب به‌دغه ډول حکم زمابه‌عقیده یوڅه ګران وی .

د پښتو په‌اولسی ادبیاتو او سنیو څیړنو ثابته کړې‌ده،چی سر وکی ډیر او بیلابیل فورمونه لری، چی‌دغه فورمونه بیا دقدامت په‌لحاظ ډیر زاړه،او د شکلیاتو له‌نظره دومره متنوع دي ،چی موږ یې دخپلو اولسی شاعرانو د اولسی‌آهنګونو په‌ګڼو اصنافو او انواعوکی بولگی نه‌شو مشخصولای،او دا هم باید هیره نه‌شی چی‌ځینی سر وکی دومره زاړه دی،چی داوستایی ګاتونوله و وهوخشا تره Vahuxshatra او اهونا د ahunad سر ه په تول‌وزم او تقطیع کی‌برابر خیژی(۱۸) .

په‌لنډ ډول ویلای شو ،چی سر وکی د پښتو دشفاهی ادب یوداسی فورم دی، چی‌له‌ډیری ځنډنی زمانی څخه په‌اولس‌کی ایجاد شوی،دچاربیتو ،بدلو او نورو خصوصی اولسی سندرو «سرونه» هم پر راګډشوی‌دی ، چی په‌لږ دقت سره «کره» او«کوته» له وړایه پکی پېژندل کیږي، او سری یو هیدای شی چی داطبیعی سر وکی دی ،او هغه بل هم دیوې اولسی سندری « سر »چی نوره سندره یی له‌منځه تللی ده.

دسر وکو په باب وروستیو څیړنو او ددې سندرو فورمی تنوع زماپه په‌خیال داولسی سندرو ددغه صنف هغه عنعنوي تعریف ته چی‌له پخوانه تر اوسه پر له پسی تکرارشوی — هم د مفهوم په لحاظ زیسان ورساوه . زما د معلوماتو له مخې د سر وکی لومړنی تعریف به هغه‌وی ، چی د ۱۳۱۸ ش کال د کابل کالنی د«پښتو ادبیات» په‌مقاله کی‌خپور شوی‌دی، هوری

---

(۱۸) د پښتو داولسی ادب لاری ص۱۳۷،۱۳۹ .

بې د پښتو دشفاهي ادب د دغه صنف په باب کښلې دي : «نیمکۍ هم دپښتو اشعارو یو قسم ته‌مرکب شعر دی ، چې له دوو جزؤ نه مرکب شوی دی یو هغه جز دی ،چې بیابیابکر ر کیږی،او دی جزء ته‌سر وایی، او بل هغه جزء دی، چې په‌منځ کې ډ ر لویږی، او دې جز ته تکۍ وایی.

دنیمکۍ داقانون دی، چې اول یوسر وو یلی شی، دغه سر عموماً یو بیت یعنی دوه مصرۍ متحدالقافیه وي، مګردادواړه مصرۍلکه دبګتۍدسر په‌شان‌یو برابر نه وي، بلکه دمستزاد په‌شکل‌یې اوله‌مصره اوږده ،او دوهمه یې لنډه وي»(۱۹).

ددغه لوړ تعریف لومړی برخه‌سمه ده، داعتراض ور نه‌ګرځي،خوددو همې برخې په‌هر توګ یې‌خبرې شته، او زه‌غواړم‌چې داولسی ادب دیوه څېړونکي په‌توګه موضوع لږ پسې وڅیړم :

۱ - ټول سر وکې یو بیتیز نه دی ،بلکه موږ په‌اوسنی اصطلاح دوه‌پاړ-کیز ، درې‌پاړکیز ،څلور پاړکیز ،او پنځه پاړکیز سر وکې لرو ، دموضوع دښې روښانولو له پاره دهرفورم د مثال دراوړوضرورت لیدل کیږی :

الف: دوه‌پاړکیز :

ته‌یې کوتره زه‌یم باز دګړنګو لیلا * راوالوځه په غرو لیلا

ب: درې پاړکیز : بندیوانه می‌ساتینه* ماته لالی وایی*
چې چیر ته‌مه‌ځه د زړه سره

ج : څلورپاړکیز : توری سترګی خماری * د رته ګرم ناله زاری
دزړه زخم می کاری * شوم رسوا ستا په یاری

د: پنځه پاړکیز : امیل‌دغاړی جوړومه * څو لیې د ګلو
اوس به لمن ډکه * راوړم دګلو * سهارسبا

---

۱۹ - کابل کالنی، ص ، پښتو ادبیات، د ۱۳۱۸ ش کال ګڼه،د کابل چاپ

۲ – په دې کې شک نشته، چې د ځينو سروکو مسرې سره متحد القافيه دي مګر په ټولو دغو سندرو داسې حکم کول هم نه ايسي، موږ ډېر داسې سروکي لرو، چې قافيې يې اختلاف سره لري، لکه دالاندې سروکې:

نرۍ يې پاڼې * شاه ليلاو نه د بادام (۲۰)
بې بې مرجانې زيارت ته سه ځه * زيارت کې ژانګې د کوږ ګرو تاويږو نه

۳ – د لوړې اقتباسې توټې په پای کې داهم ګنبل شوې، چې د متحدالقافيه سروکو مسرې سره برابرې نه دي، بلکه د بستر اد په بڼه يې اوله او اوږده او دوهمه لنډه وي، د دغو خبرو په جواب کې احترا ما ليکل کيږي چې:
– په پښتو اولسي ادب کې ډېر داسې متحدالقافيه سروکي شته، چې مسرې يې سره برابرې دي، لکه:

څلکې خپه ده نن سبايې ودوينه * په سر ټيکرې يې جوني او بنګړي يا کوينه
څلکې روانه د سرې او به راوړينه * دا تورپيکې يې ستا د غير شمال و هنه.

( د دغو سروکو د لومړي سروکي دوهم پاړ کې په ځينو سيمو کې د ليستې دی: «د کلي پيغلې تورا وربل په رنګوينه» (د ځير نيار نورالله اولسيال په مننه)
– دا خبره سمه نه، چې د ځينو سروکو اوله مسرې اوږده، او دوهمه يې لنډه وي، خو پر ټولو سروکو د غه ډول حکم د تايل وړ ايسې ځکه موږ په هيڅ يو پښتو سروکو داسې سروکي مومو، چې د پورتني فارمول په بڼه يې اوله مسرې لنډه، او دوهمه يې اوږده وي، لکه دا سروکي:

بياکډې يار ېږي * بېلتون زما په سيمه راوړل چپاوونه

---

(۲۰) دغه سروکی د «سروکي» نومي اثر په ص ۱۵۲ نومره کي هم نه دی ضبط شوی، او د لومړي پاړ کی په پيل کې يې د «بيا» مختاړي ورزيات کړی دی خو په ۲ مخ کې په تکراري ډول هم ضبط شوی دی.

همدغه تر اعتراض لاندې لوړ تعریف په ادبی فنون(۲۱) پښتنی سندری دوهم ټوک(۲۲) پښتو لوک گیت (۲۳) پښتو شاعری (۲۴) فولکلوری گیدی (۲۵) او تاریخ آدبیات مسلمانان پاکستان و هند(۲۶) کی د الفاظو او عباراتو په تغییر سره را اخیستل شوی دی.

ښاغلی عبدالحلیم اثر افغانی سالارزی سره له دې چې دغه تعریف منلی، د همدې تعریف یو ځای یې په قطع ډول داحکم هم ورزیات کړی دی: « . . . . او عموماً ړومبی مصره یې دیارلس سیلابه او دوهمه یې او و مسیلا به وي »(۲۷) نور د

---

(۲۱) وگوریء! ادبی فنون، ص۴۶، داستاد بینوا، ۱۳۲۶ کال، پښتو ټولنه استاد بینوا، د همدغه تعریف دراوړو تر څنگه داخبره هم کړې، چې د سرو کی لومړې مسری دیارلس سیلابه وي، او دوهمه یې اوو ه سیلابه وي ؟ . همدغه زوړ تعریف دننگرهار مجلی د ۱۳۵۹ ش کال د ۴ گڼی، په ۱۹ مخ کی هم په هماغه زړه بڼه راوړل شوی دی .

(۲۲) پښتنی سندری ج ۲ ، ص ۲۲۸، ۱۳۳۵ ش کال — پښتو ټولنه

(۲۳) پښتو لوک گیت، فارغ بخاری ، ص ۵۰، دوهم چاپ، ۱۹۶۱ ع کال لاهور.

(۲۴) پښتو شاعری، دفارغ بخاری او رضا همدانی، ص ۲۹، د ۱۹۶۶ ع کال د کراچی چاپ.

(۲۵) فولکلوری گیدی، دښاغلی علی محمد منگل، ص ۱۷، ۱۳۵۰ ش کال کال چاپ، کابل – پښتو ټولنه

(۲۶) تاریخ ادبیات مسلمانان پاکستان وهند ج ۱۳، ص ۳۷، د ۱۹۷۱ ع کال دلاهور چاپ.

(۲۷) وگوریء! پښتو ادب ، ص ۲۴۳، ۱۳۷۰ ق ، پېښور.

سر و کو کومه تقطیع چې یې دخپل ،کتاب په ۲۴۵ مخ کې کړی ، هـو ری يې په‌ناسم ډول د یوه سر و کی لومړی مسری او وه‌لس بله‌یې شپاړس سیلابه ایستلی ده، چې‌دغه تقطیع بیادده خپل لوړ(کړی) حکم نقضوي(۲۸) .

همدار نگه دبدیع او بیان مؤلف چې د دی سند رو کوم تعریف‌را وړ ی پسه کې‌هماغه دکابل کالنی تعر یف دی،خو یو ځای یی داخبر ی‌هم و رسره ملی کړی‌دی‌چی:« کله کله یې دو اړه مسری سره یوشي ،او ځینی و خت یوه مسری او ږ ده او بله لنډه وي، او دقافیی شر ط هم‌پکی نشته »(۲۹).

د دغو و روستیو خبرو زیاتول د دغه کتاب تعر یف تر یو حده صحت ته نژ دی کړی‌دی .

د پښتو داولسی ادب په محققینو کی زمو ږ تکړه فو لکلو ر پوه ښاغلی رفیع یو از ینی سړی‌دی ،چی کابولس کاله دمخه‌یی په‌دغه‌معمو ل تعر یف کی‌تغییرات ر اوستی، او په‌ابتکاری ډول یې ترز یاته حده سم کړی‌دی، دوی دسر و کو په باب داسی کښلی دی:« سر و کی عموماً یو بیت ،یعنی‌دو ه‌مسری لری، چی‌علی‌ـ الاکثر یی‌لومړی مسری‌تردوهمی اوږده وي، اولکه دعروضی نظم مستزادغو ندی شکل لری ، خو‌کله د و اړې مسری برابرې ،کله لو مړی مسری لنډه او دو همه اوږده ،او‌کله کله دآزادنوی شعرغونډی دقافیی په‌شرط نه‌وی مشر وطه» (۳۰).

---

(۲۸ ) د ښاغلی اثر د تقطیع د دغو تېر و تنو یادو نه فاضل استاد پو هاند ـ عبدالشکو ر رشاد هم په‌خپله یوه لیکنه کی کړی‌ده (و ږمه،د۱۳۰۳ کال گنی)

(۲۹) بدیع‌او بیان، د پوهندوی نو ر احمد شا کر، ص۱۲، در یم چاپ، ۱۳۰۰ ش کال ، کابل .(۳۰) و گوری ! دخلکو سندری ص۱۲۳، ۱۲۴، ۱۳۴۹ ش کال دتاریخ اوادب‌ټولنه ، کابل.

له لوړه اقتباسي تړو کره ښکاري چي دخلکو سندري پياوړي مؤلف د خپل تعريف و روستي برخه ددې سندرو په باب له و اقعيتو نوسره سمه کړې ده .

د خلکو سندري ترخپړ يد وا ووه کاله وروسته خپړنمل ژواك د نغمو کاروان په مقدمه(۳۱) کي د سروکو باب د ښاغلي رفيع خبروته ورته خبري کړي‌دي.

هغه آثار او کتابونه چي لوړ ياد شول دهغو آثارو تر څنګه ځيني نور آثار هم شته، چي‌دسروکو په‌باب يې ډيري داسي خبري کړي، چي دځينو يې زياتر او دځينو هغو يي تولي دسنلو وړنه‌دي، نوځکه ماهم دغه آثار ترلوړو هغو چي ځيني خبري يي خوسنلي کيږي، وروسته راوړل،دادی ،زه دغه کتابونه د تېرو تنو دکمښت او ډيرښت له امله په‌ترتيب سره لاندی راوړم :

۱ــ د«پښتو ژبان او رادب کي‌تاريخ» مؤلف تر يوه‌حده دمعمول تعريف تراغيز لاندی دي ، خودايي همورسره زياته کړې، چي : په‌ظاهر کي د نيمکي فورمي جوړښت له لوبي او بګتي سره يوشان ښکاري(۳۲) .

۲ــ انسايکلو پيډيا آف اسلام: په‌دی کتاب کي‌چي دسروکو په‌باب ګومي خبري راغلي له‌زياتر واوحتي له تولو سره‌به‌يي دپښتو داولسي ادب هيڅ څيړونکي اومحقق موافقه ونه کړی ، اودليکوال دخپل ذهن مولود ښکاري ښکاري(۳۳) .

---

(۳۱) وګوری‌ء ! دنغمو کاروان، دنصر الله‌حافظ تولونه، دخپړنمل ژواك سريزه ص‌ی، ۱۳۵٦ ش کال ،کابل .

(۳۲) پښتو ژبان او ادب کې تاريخ ، دمحمدمدني عباسي، ص۸۳،د۱۹٦۹ ع کال دلاهور چاپ . (۳) انسايکلو پيډياآف اسلام ( اردوايډيشن) ج۵،ص ٦۲۵، د۱۹۷۱ع کال دلاهور چاپ .

۳ــ پښتو نامه: سیدانوار الحق جیلانی چی په دی کتاب کی دنیمکیو په باب کومی خبری راوړی تر زیاته حده دانسایکلوپیډیا آف اسلام له لیکنی متأثری ښکاری، خو دلیکوال شخصی او ذهنی ابتکارات یی هم ورسره سله دی ، دده دخبر وترجمه دلی کاږم: « دا(نیمکی) یو ډول اولسی سندری دي، چی دچار ـ بیتي اولوبی سره مشابه صنف گڼل کیږی، په دې سندروکی زیاتره دعشق بیان شوی ، اوله چاربیتو سره یی لوی توپیر دادی، چی نیمکی ډیری اوږدې نه دي ، بلکه زیاتی یی څلور یاپنځه بنده وي ، دوهم داچې د نیمکۍ په سرـ یوکی یوه کوچنۍ مسره وي، ددغې نیمی یاکوچنۍ مسری له امله دغو سندرو ته نیمکۍ وایی...»(۳۵) .

زما په عقیده دپښتو داولسی ادب له محققینو څخه به څوک دښاغلی انوارـ الحق دخبرو ملاتړ ونه کړي، ځکه ده چې دنیمکی دپېژندنی په باب کومی خبری کړي هغه نیمکۍ نه راپیژنی ،بلکه سرۍ فکر کوی، چې دابه د پښتودخصوصی اولسي سندرو (۳٦) یو ډول وي،نه نیمکۍ .

د پښتو داولسی ادب ټولو محققینو اوخیړونکو ته څرګنده ده،چی نیمکۍ ځانګړې بندونه نه لري، بلکه پخپله نیمکۍ د «سر» اولنډۍ پکی دښېړ وونکو په توګه دبندار زښت لرلای شي،چې شمیر یی ټاکلی نه دی، ښایی په څینو وختونو

(۳۵) وګورۍ! پښتو نامه، ص۸٦، د۱۹۷۵ع کال چاپ.

(۳٦) ښاغلی رفیع دخلکو سندری په ۸۳ مخ کې د پښتو اولسی سندری په دوو برخو: عمومی او خصوصی سندرو ویشلی دی ، هغه سندری چې ویونکی یې معلوم دی ، هغو ته یې خصوصی ، او دهغو چې نه دی څرګند عمومی سندری ویلی دی .

کې له یوې نیمکې سره شل لنډۍ وو یلې شي، او په ځنیو ختونو کې درې یا څلور. له چاربیتي او لوبي سره یې دشباهت وخواوې هم زما په نظر تتې غوندې ښکاري او نیمکۍ یوازې په عشقي موضوعاتو پورې نه دي ویلې شوې بلکه دفورمونو په څیر یې موضوعونه هم ډیر او رنګین دي.

دنیمکیو «دنامه» په باب دلیکوال له تاویل سره موافق نه یم، او دتعریف د نورو توکو نو په څیر یې دده له ذهنه راوتلې څیزګنم.

۳— پښتو ټپه: پروفیسور داور خان داؤد ددغه کتاب په پیل کې د پښتو داولسي اشعارو دمعرفې په ترڅ کې دنیمکې په باب لیکي: «نیمکۍ دپښتو د اولسي شاعرۍ دتولو نه اسان او ساده صنف دی، دادټپې (مصرعی) ترقي یافته قسم دی دټپې په رنګ ددې هم روسپې مصرعه نیمه وي، دې ته دنیمکۍ «سر» ویلې شي چې په تولو نیمکو کې ویلې کیږي دغه رنګ دهرې دریمې مصرعي نه پس ددې تکرار کیږي، په نیمکې کې یو قصه یاواقعه بیانیږي. خوځینې وخت پکې دقلبي واردات اظهار هم کیږي، په دې کې لکه د نظم په رنګ د شروع نه ترآخره پورې وحدت تأثر وي. دااکثر ښځې او سړي د ګډا په وخت په شریکه وایي، ټپې (مصرعی) ځانله یوازې او نیمکۍ په شریکه ویله شي.

نیمکۍ دښځو مشهور صنف دی، او ددوی دپاره زیات زړه راښکون لرې، ښځې همیشه دغرخې کولو په وخت په ګودرداو بوډکولو په موقع په پټو کې دساګ په وخت یادو اده ښادۍ په مجلسونو کې دکورس په شکل وایي ددې ویلو طریقه او ددې خاتمه داسې کوي، چې په آخر کې تولې ښځې په ګډه دې سریو یادوه ځله وایي» (۳۷).

زما په عقیده که چادپښتو داولسي ادب داصنافو الفبې لوستي وي، نو به دد

---

(۳۷) پښتو ټپه ص ۲۶—۲۷، د ۱۹۷۹ ع کال، دپېښور چاپ.

نیمکیو په باب دنو موړی پر و فیسو ر له زیاتر و خبر و سره موافقه و نه کړی ځکه تر او سه‌سی دسندر و دتکامل په‌باب په کومه لیکنه کی څه نه دی لوستي او نه‌دچاداخبره کړې ،چی داو لسی‌سندر و دغه یاهغه‌صنف په‌لو مړی‌سر کی په دغه‌یاهغه ډو ل ایجاد یږی، کله‌چی‌یې‌دتکامل پر و سه‌تېره کړه، نو بیادغه یاهغه سندر و ځنی جو ړ یږی. دنو موړی پر و فیسو ر دغه خبره‌چی:« نیمکی د تپی تر قی یافته قسم دی» دده دمبتکر او متکامل فکر مو لو د ښکاری.

دنیمکیو په‌باب دښاغلی پر و فیسو رجانانه تعبیر و نه‌تو ل ابتکاری بنه لری؟ ځکه تر او سه دپښتو داو لسی ادب هیڅ محقق په‌دې نه‌وُ بر یالی شوی، چی‌دغه مو ضو ع کشف کړی‌چی:« دټپی په‌ر نګ دنیمکی ر و مبی مصر عه نیمه‌وی» .

زه‌نه پو هیږ م چی‌پر و فیسو ر صاحب په کوم‌دلیل و یلی چی‌په‌نیمکیو کی یو قصه یاو اقعه بیانیږی ، ځکه ځینی سر و کی د ځینو تار یخی پیښو د عمو می څر ګندوی حیثیت لری ، هغه پیښه چی‌او لس له‌پاره مهمه وی، او دملت په سر-نو شت اره پیدا کوی،په سر و کی کی‌یی په‌مجمو عی تو ګه یوه‌عکا سی کیږی نه‌داچی تو له‌و اقعه پکی بیان شی ، ځکه په خپله د سر و کی یانیمکی فو ر می جو ړښت د پر و فیسو ر دلو ړی ادعانقض و اقع کیږی، او دغه‌فو ر م دقصی دبیان حو صله نه‌لری .

دنیمکیو دو ینګ په‌باب هم‌زه دپر و فیسو ر له‌قاطع حکم سره —چی نیمکی نجو ئی دګډا په‌سهال کی‌و ایی — مو افق‌نه یم ،ځکه داخبره حتمی‌نه‌ده چی‌تو ل سر و کی دی په ګډه د کو رس په تو ګه و و یل‌شی ، او یاداچی حتماً دې د ګډا په‌و خت کی و بلل شی، ځینی سر و کی د ښځو په‌اتن کی‌و یل کیږی، او هم هر چاته‌څر ګنده ده،چی سر و کی د کو رس‌او هم په‌ځانته شکل ویل کیږی. — سر بیره پر لو ړ و یادو شو و لیکنو په‌و ر وستیو کلو نو کی په‌افغانستان کی

ځینې نو ری ښېر نې او لیکنې خپرې شوې، چې دسر و کو په باب یې هغه تېر یاد شوی مجر د تعریف اکتفأنه‌ده کړی ، بلکه په‌خپلو لیکنو کې‌یې د سر و کو باب نو ری نوې خبری هم کړې‌دی . په دې ډله کې پو هاند صدیق‌الله رشتین لو مړی ځل دې‌موضوع ته‌متوجه شوی، او په‌خپله هغه مقاله‌کې چې‌یې — د پښتو ښېړ نو دبین‌المللی مرکزدبین‌المللی سیمینا رپه‌مناسبت ار و ولی، دسر و کو په‌باب کښلی دی:« نیمکی: داډو ل شعر له‌دو و تو کو څخه جو ړ یږی ، چې‌یو تو کی یې‌لنډی او تکی دي او بل تو کی‌یې سر و کی دی ، په دې ډو ل شعر کې د لنډی د هرې مصری‌سر ه‌سر و کې بیابیا تکر ار یږی، دپښتو په‌او لسی ادب کې سر و کی هم‌ډیر ز یات دی، اوپه‌هره سیمه کې‌جلاجلاډو لو نه‌لری»(۳۸)

تر دې لیکنی و ر و سته چې‌ښېړ ندوی دوست «دپښتو داو لسی‌ادب‌لا ری»(۳۹) نو می اثر کې په‌سر و کو کومه لیکنه کړې‌ده ، په‌هغې کې‌یې دسر و کو په باب هغه عنعنوی لیکنو ته‌پابندی نه‌ده ښکاره کړی،بلکه دسر و کو په فو ر می ځانګړ نو یې نوی ښېړ نه کړې ده، چې دده دغه ښېړ نه دسر و کو په فو ر می‌شننه کې دستې ار ز ښت لري، د«سر و کی» نومی‌اثر په‌مقدمه کې‌چې‌دسر و کوپه‌فو ر- مې خصو صیاتو څه کښل شوی، اویا هغه مقاله‌چې‌ښاغلی‌علی‌محمد منګل‌د کابل مجلې د۹ ۵ ۳ ۱ش کال په ۱ ګڼه اودهمدغه کال دپکتیامجلی په‌۳ګڼه کی‌په‌سرو- کو کښلی ده‌اوهم دهمدغی‌مقدمی‌ځینی بحثونه‌ددغو سندر و په‌فورمی تحلیل کی دښېړ ندوی دوست له لیکنی‌څخه متأثر دی .

همدار از ښاغلی عبدالکر یم پتنګ چی دخپل سر و کی نو می اثر په‌پیل کی

---

(۳۸) وګو رئ: پښتو ښېړ نی ص۳ ۵، د۶ ۵ ۳ ۱ش کال چاپ— پښتو ټو لنه .

(۳۹) وګو رئ: دپښتو داو لسی ادب لاری ص۷۵—۸۵، پښتو ټو لنه ، ۱۳۵۶ش کال چاپ.

کومه‌سریزه کښلی (۳۰) ددې سریزی خبری له‌وروستیو څیړنو سره سمی دي،او هغه زړې خبری نه‌دی پکی تکرارشوی .

دسروکو په‌باب دلوړو نلسمو،نیمه‌سمو په‌اصطلاح سمو اوگردسره غلطو خبرو له‌راوړو سرسره بیاهم نه‌شوه څرگندچی لوستونکی او یاهم د پښتو د اولسی ادب څیړونکی ددغو سندرو په با ب کوسی خبری ومنی ، او یاددی سندرو تیك تعریف کوم دی ؟ .

زه دتهولو هغو ښاغلو لیکنو ته په‌پاملرنه — چی یې دسروکو په‌باب څه کښلی دی — ددی‌سندرو دمعرفی له‌پاره لاندی‌خبری لیکم، ښایی دغه‌خبری د «تعریف» په‌سیتو دبرابری نه‌وي، خو ددغو سندرو فورمی او موضوعی‌ځانگړنی پکی له‌پامه نه‌دي لویدلی او داهم حتمی نه‌ده، چی‌دغه‌تعریف دې‌څوك ومنی دسروکو په‌باب زماخبری پیشنهادي ارزښت لري :

«سروکی، چی‌ځینی پښتانه یی‌نیمکی او په ځینو سیمو کی‌یی‌پام بولی ، د پښتو داولسی شفاهی سندرو یوخوږ اومست شعری ډول‌دی، چی‌یوتوك یی په‌خپله«سروکی» اوبل یی‌لنډۍ‌دي . سروکی دوینگ په مهال کی یوازی نه‌ویل کیږی، بلکه لنډۍ یی‌حتمی جزء دی او دلنډۍ یو په وسیله بشپړ یږی.

سروکی دجوړښت په لحاظ مختلف دی ، دمسر یو دلنډۍو الی او اوږدوالی‌او هجایی‌سیستم‌له‌پلوه‌هم توپیر ونه سره‌لری، دمسریوخپل‌منځی قافیی‌یی هم‌وازر ازدی او دفورمی جوړښت له‌پلوه یی تریوې تاکلی ضا بطی لاندی راوستل گرانه خبره ده،خو په‌مجموعی توگه په‌دوه پاړ کیزو ،درې پاړ کیزو ،څلور پاړ کیزو او پنځه پاړ کیز وسروکو یی بیلولای شو ، ښایی داسی سروکی هم ومیندل

---

(۳۰) وگوریء: سروکی ،سریزه، دعبدالکریم پتنگ د ۱۳۵۸ ش کال‌چاپ. په‌دی سریزه کې په‌اجمالی توگه دسروکو دټولو نگ په‌هکو هم خبری شوی‌دی .

شی، چی دپاړ کو شمیر بی تر دې زیات وي، دغه سندری دو ینگ پهوخت کی دپاړ کو دتکرار له‌امله هم زیات تو پیر و نه‌لری، دځینو پاړ کی په خهله بنه‌او او دځینو په‌څه تغییر سره تکراریږی .

دموضوع په‌لحاظ هم‌سرو کی رنګارنګ دي، چی دعشق‌او مینی خبری ، د پښتنی کلتورخصایص، دځینو ملی او محلی‌تاریخی‌و اقعاتو عکاسی او د ځینو اجتماعی مسایلویوه‌عمومی ترجمانی په‌هماغه لنډتنګ چوکاټ کی کولای‌شی .

په‌سرو کو کی داولسی شاعرانو دسندرو «سرونه» یا کسرونه هم ور گډشوی‌دی، خو داولسی سندرو دیوه ځانګړي شعری فورم په توګه هم له لرغونی پخوا څخه په‌اولس کی‌شته »

ماددې سریزی په‌یوه برخه کی داژمنه کړې‌وه،چی زه به‌دلی‌داسی‌خبرې نه‌کوم چی‌دبناغلی لیکوال له‌خبرو سره— چی‌یی د کتاب په‌متن کی کړی تکرار رامنځ ته کړی، بلکه دغه‌خبری به‌ذ کتاب دتحلیلو نو مکملی او مرستندو یی‌وی په همدی اساس دسرو کو په‌باب لوړې خبری هم په‌متن کی‌نه‌دی‌راغلی ،او د سرو کو دو یش او تولو نګ دهغو په باب هم‌څه‌نه‌یکی میندل کیږی،نوځکه غواړم چی سرو کی ددغو دو موضوعو نو له پلوه نورهم پسی و پلټم،او څه‌نوری خبری هم پرو کم.

## د سرو کو و یش

کله چی‌دسرو کو دو یش خبره‌رامنځ ته‌شی،نو دفورم او موضوع مسأله هم‌و رسره جو خته دسړی په‌مغز و کی راو ګرځی، سرو کی دموضوع او فورم دو اړو له پلوه مختلف ډو لو نه‌لری ، چی‌دلی‌یی راو ړل دبحث دبشپړ تیاله پاره لازم دی .

کله‌څه‌هم دبناغلی‌پتنګ‌د«سرو کی» نو می اثر په‌پیل کی‌پرسرو کو یوه

او وه لس مخیزه لیکنه شوی ده، خو هغه موضوعات چی دسروکو په باب په دی مقاله کی څیړل کیږی، دابه دهغی مقالی تکرار نه، بلکه دو اړی لیکنی به یوه بله بشپړوی .

ښایی ځینی موضات دعباراتو ،تعبیراتو او حتی جزوی نظری اختلافو سره دلی او هوری تکرارهم راغلی وی، خو شکل به یې بدل وي ، په دې لیکنه کی کی لوړی سروکی دفورم په لحاظ ښیم ، او بیا بی په موضوعی خصوصیاتو خبری کوم :

**۱ ـ فورمی ویش :**

---

سروکی دفورم په لحاظ خوراز یات دی، او دځیړندوی دوست دلیکنی (۱۳) له مخی یی تر یوی فارمولا لاندی راوستل گران دی ، خو بیاهم هغه کار چی ددی سندرو په ویش کی تر سره کیدای شی، په لاندی ډول وړاندی کیږی :

سروکی په لوی سر کی په دوو لویو څانگو ویشل کیږی : الف داتن ـ سروکی ،ب ـ عام سروکی. دغه دواړه ډوله سروکی دلنډیو په وسیله بشپړ ـ یږی . سروکی په لنډیو کی دتکرارله امله سره مختلف دی ، دځنیو سروکو یوپاړکی، دځینو دوه یادیرپاړکی او کله هم ټول سروکی تکراریږی. په لنډیو کی دتکرارله پلوه نه، بلکه دځپلو اجزاوو دتألیف له مخی سروکی دوه ډوله دی:

الف، هغه سروکی چی په جوړښت کی یې تکرارنه وی،

ب، هغه سروکی چی یاټول یایی یوه برخه تکراریږی .

هغه سروکی چی په اجزاوو کی یی تکرارنه وی راغلی ، دلوړی گروپ په توگه لاندی راواړل کیږی :

---

(۱۳) دپښتو داولسی ادب لاری ص۷۵.

۱ــ هغه سروکي چې له دوو پاړکو جوړدي ، ددغو سروکو پاړکي کله کله دڅپوله مخې په خپلو منځوکې سره برابر هم وي، لکه د اسروکي:

یار رانه جدا شو په لمسون د غمازانو
اوښکې مرغلرې دي توئیږي له چشمانو

د غوسروکو ته اندولیز سروکي هم ویل کیږي ، خو په همدغو دوه پاړکیز وسروکوکې بل ډول نااندولیز سروکي دي ، چې دسروکو پاړکي په خپل منځ کې د څپو له مخې سره برابر نه وي ، یعنې دا چې د سروکي یو پاړکي اوږد بل لنډوي، یایې یو لنډاو بل اوږدوي ، لکه داسروکي :

چاپیره اوړولگیدنه * کوز دچنارو په کنډولیونی راغله
توروکوڅیوکې دې وتومبلې زیړې گلې* جگې که‌دا سرمنگولې

نااندوله سروکي بیاپه خپلو منځوکې په‌څلورو گروپو نوویشل کیږي :

الف، لنډی و زمه سروکي، چې دڅپو د شمیر پر اساس یې دلنډیو په‌څیر لومړی پاړکی ۹څپې او دوهم یې ۱۳ څپې‌لکه داسروکي:

راوړه‌بندې چې‌اوس‌یې وړونه * جانانه‌بیرې له‌راځه چې‌و زانگونه(۳۲)

ب، هغه‌سروکي.چې‌لومړی پاړکی یې ۱۳ څپې او دوهم‌یې ۹ څپې وي ،لکه داسروکي:

امیل داوښکو به‌له‌ځانه‌سره‌وړمه *زه‌دجانان‌دیدن‌ته‌ځمه

ج، هغه‌سروکي چې‌لومړی‌پاړکی یې۱۳ څپې ، خو دوهم‌یې‌مختلف وي په ځینوکې‌زیات او په‌ځینوکې کم وي، لکه داسروکي :

---

(۳۲) په‌ځینو سیموکې «وپیرونه» ویل کیږي .

بیگاه تەر اشەجار و کړی  می‌دالان‌دی  *و و ړو و ړ باران دی
سپینه رو پی دې‌پەاو ر بل کړەو ه ده* نن بیاجلکی خپه ده
له خو به پاخه مسا فر جانان دې ځینه * بیا خو نه را ځینه

پەدې مثالو نو کی دلو مړی سر و کی دو هم پاړ کی پنځه څپې، د دو هم او و هڅپې،او ددر یم شپږ څپې دی .

د: هغەسر و کی چی‌دو هم پاړ کی‌یی ۹ څپې او لو مړی یی کله ز یات او کله کم‌وي، لکه داسر و کی :

تاچی را و ړی‌له‌باز اره پەپیسو * شین خال دې ببو و ایه پەڅو

۲— هغەسر و کی چی‌لەدر یو پا ړ کو جو ړوی، لکه داسر و کی:

راشه لیو نیه*تو ر او ر بل‌می ستادی* دبل خاو ری‌شه مینه

دغەدری‌پاړ کیز سر و کی بیاپەځلو رو گر و پو نو و یشل کیږی :

الف، هغه دری‌پاړ کیز سر و کی چی‌دقافیی لەقیده و تلی وی،لکه داسر و کی:

چنار و له می‌و ړ ینه * سباسیل پەدامان‌دی* تو رەاو ر بله (۴۳)

ب، هغەدری‌پا ړکیز سر و کی چی‌لو مړی او در یم پا ړ کی‌یی په یوه قا فیه خو دو هم پاړ کی‌یی بیاپەبیله قافیه وی،لکه داسر و کی:

بل او ر دی«مستی‌نادانی لیلو * پیکی دی‌تو ر دی

ج، هغه دری‌پاړ کیز سر و کی چی‌دوه پاړ کی یی په خپلو کی سره هم قافیه خو در یم‌یی پەبله قافیه وی،لکه داسر و کی :

ییز و ان می‌ز و ړ کړ دصحر اخر و گر دو نو * ناجو ړه کړ م غمو نو * جانانه راشه  راشه

د، هغەدری پاړ کیز سر و کی چی‌در یو اړه پاړ کی یې‌پەیوه قافیه وی، لکه

(۴۳) پەځینو سیمو کی «تو ره بلبله » و یل کیږی .

جانانه را کړه اجازات ناوخته کیږی * څم درنه باران او ریږی * شال سی لمد یږی

۳— هغه سروکی چی له څلورو پارکو جوړوی ، دغه گروپ سروکی بیا په «۹» ځانگو ویشل کیږی :

الف، هغه سروکی چی څلورو اړه پارکی یی په یوه قافیه وي ، لکه دا سروکی

لیلا خندل کوي * په زړو نو چل کوي * سترگی یی تو ری په کجلو کړی خوړل کوي * عجب کتل کوی.

ب، هغه سروکی چی لومړی دوه پارکی یی په یوه قافیه او دوه نوري یې په خپلو کی سره په جلا قافیو وي، لکه داسروکی :

موری پنی سی را کوه چی پسی ځمه * مړه به شمه * یارسی دزرگر په دکان * لیدلی مادی

ج، هغه څلور پارکیز سروکی چی لومړی او دریم پارکی یی په یوه قافیه دوهم او څلورم پارکی یی بیله قافیه لری ، لکه دا سروکی :

اسیلو نه جوړوی * ارسلاخانه * په زرگر یی سپینوی *جار جار جانا نه

د، هغه څلور پارکیز سروکی چی لومړی او دریم پارکی یی په یوه قافیه وي، او ددوونورو قافیی یی سره بیلی وي،لکه داسروکی :

چابه دروغ درته ویلی وی * دربه ننواتی شم *دبل به دې منلی وی *مه شه مرور

ه ، هغه څلور پارکیز سروکی چی دوهم او دریم پارکی یی یوه قافیه لری؛ د دلومړی او څلورم قافیی یی سره جلا وی ،لکه دا سروکی :

زما دزلفو ارسانجنه *رب دی را وله نن *الله دی را وله نن *په چمن بیا

و ، هغه سروکی چی لومړی او دوهم پارکی یی یوه دریم او څلورم پارکی یی بله قافیه لری، لکه د اسروکی :

کمیس سی لنډه و نیسه موری * زما نصیب کړې جاسی تو ری * جانان سی بیا چیز ته روان دی * د بیلتانه داسی دوران دی

ز، هغه څلور پاړ کیز سرو کی چی‌لو سړی، دو هم او څلو رم پاړ کی یی یو ډو ل قافیه لري، خو ددریم پاړ کی قا فیه یی جلاوی لکه دا سر و کی :

څه‌دې‌شو له‌مینه* یاره نازنینه* ماته‌به‌دې داوې* ته‌فرهاد یی زه‌شیرینه

ح، هغه‌سر و کی چی‌دو هم او څلو رم پاړ کی یی‌په‌یوه قافیه وي، خو د لو سړي او دریم پاړ کی یی‌جلاوي، لکه داسر و کی :

زه‌به‌یی‌څنگه تېو لو مه* جماسې* تاو لی دانی کړې‌دی* وړې وړې

ط، هغه‌څلو ر پاړ کیز سر و کی چی‌دقافیې له‌قیده آزاد وي، لکه داسر و کی :

چرگو ناری کړې* جگ‌شه‌لالیه* خوب به‌بیاو کړی مینه * پاخیږه یاره

۳— هغه سر و کی چی‌له‌پنځو پاړ کو جو ړوی، لکه داسر و کی :

ژ ړشه‌دیدن و کړه* همز و لی رانه لاړې* میر ات شی* زه‌به‌تار او اخلم* منگیه مات شی

دپنځه پاړکیزوسر و کوپاړ کی‌هم‌په‌قافیو کی‌ډیر اختلافو نه سره لری، چی دتو لو تفصیل موضوع او ږدوی .

داو و هغه لو سړی گر و پ سر و کی چی‌په‌تألیف کی‌یی‌تکر ار نه‌ؤ ، او دا دی هغه دوهم گر و پ سر و کی چی‌په اجز او و کی یی تکر ارو ا قع کیږی‌لکه:

۱— هغه‌سر و کی چی‌له‌یوه پاړ کی جو ړوی، خو دآهنگ دبشپړ تیاله له‌پاره یو ځل یاځو ځله تکر اریږی ، لکه داسر و کی :

شا ه و زیره یاره* شاهو زیره یاره

( دغه سر و کي په ځینو سیمو کی دوه پاړ کیزهم دی )

۲— هغه تکر اریدو نکی سر و کی چی‌له‌دو و پاړ کو جو ړ و وی، دغه‌سر و- کی بیا په پنځو گر و پو نو و یشل کیږی :

الف، هغه‌سر و کی چی‌لو سړی پاړ کی یی‌له‌دو هم څخه‌و ر وسته‌بشپړ تکر ار- یږی، لکه داسر و کی:

چر بانگ دی * پاخی لالیه خوب به‌بیاو کړې سینه * چر بانگ دی

ب، هغه‌سر و کی چی‌دلو مړی پاړ کی لو مړی برخه‌یې پر ته له‌کو مه تغییره تکر ار یږی، لکه داسر و کی:

په بلی‌و ر و څه لیلاو ر و څه * باد دی‌دزلفو بوی راو ړی‌پری تاز ه‌یمه * په بلی و ر وڅه (۴۴)

ج، هغه‌سر و کی چی‌دلو مړی پاړ کی لو مړی بر خه یی له یو څه تغییر سره تکر ار یږی، لکه داسر وکی :

جمدانی لمنی غو نډه به‌دې و ړمه * ر او ابه دې‌ړو مه * جمدانی

د، هغه‌سروکی چی‌دلو مړی پاړکی دوهم یاسنځنی جزء یی‌و ړکی تکرار یږی. لکه داسر و کی :

پاخیر ه‌شیر ینی سبادی * بر و لگیږی‌و نی پانی ر ژ و ینه * سبا د ی

ه ، هغه‌سر و کی چی‌دو هم پاړ کی یی‌تکر از یږی، لکه داسر و کی :

ر اشه جانانه * مر م بی‌له‌تانه * سر م بی‌له‌تانه (۴۵)

۳— هغه سر و کی چی‌له‌در یو پاړ کو جو ړدی ، دغه‌گر و پ سر و کی بیاپه در یو بر خو و یشل کیږی :

الف ، هغه دری پاړ کیز سر و کی چی یی د لو مړی پاړ کی یوجزء یایی‌تول پا ړکی پکی تکر ار یږی ،لکه داسر و کی :

---

(۴۴) دغه‌سر و کی دپښتو داو لسی ادب لاری په۴۸مخ کی سم‌نه‌دی‌راغلی لو ړیی سم‌شکل و لیکل شو.

(۴۵) دغه سر وَ کی، د«سر و کی» نو می‌اثر، دزلمی‌هیو اد مل په مقدمه لسم مخ کی نا سم ضبط شو ی د ی، پا ړ کی یی و ړاندی و ر وسته شو ی‌دی.

د کمرگی پەسرسی کوردی * زړەسی نسکوردی * دیدن تەواوړەسینه *د کمرگی

ب، هغه سروکی چی دوهم پاړکی یی پەدریم پسی تکراریږی، الکه داسروکی:

لری شه بیلتو نه * غمجن دې کړ مه * نو رسی د سوی زړگی ماخله آزاړو نه

غمجن دې کړ مه

ج، هغه سروکی چی دریم پاړکی یی تکراریږی، لکه داسروکی :

ماایلبندته خېژ وینه * زماتو رەجانانه * کډې باریږي * کډې باریږی

هـ-لەخلورو پاړکوجوړ سروکی دتکرارلەاسله پەخلورېرخوو یشل کیږی :

الف ، هغه سروکی چی لومړی پاړکی یی تکراریږی

ب، هغه سروکی چی دوهم پاړکی یی تکراریږی

ج ، هغه سروکی چی دریم پاړکی یی تکراریږی

د، هغه سروکی چی څلورم پاړکی یی تکراریږی. دغه رنگه پنځه پاړکیز

سروکی هم دتکرارلەاسله اختلاف سره لری . ددغو دووگروپونو سروکو

مثالونه دبحث داوږدوالی دسخنیوی پەمنظورونه کړل شول دی .

۲ موضوعی ویش :

پښتواولسی ادب د پښتون قام دتېرو لوکړووړو ترجمان دی، زموږ د کلتوریوه هینداره ده ،

او زموږ دخلکو دملی، اجتماعی اوروحی ځانګړنو، عکاسی پەاولسی ادب کی شوی ده

او هم دسینی یوداسی تود بازاردی چی متاع یی دنړی لەنورویا زارونو څخه پەخوند

رنګ کی خاصی ښیگنی اومزایا وی لری .

کـه چیری موږ د پښـتوشفاهی ادب هرصنف ترڅیړ نی لا نـدې و نیسو نـو بـه

دغه گرده موضوعات پەمختلفو اشکالو پکی بیان شوی وی .سروکی هم د

اولسی ادب دیوه لرغونی فورم پەتوگه تاریخی،عشقی،اجتماعی اوکلتوری

موضوعاتوکی ویل شوی دی،او موږ پەدغو ټولو موضوعونوکی سروکی لرو :

**الف ـ تاریخي سروکي :**

دپښتنو داجتماعي او ملي تاریخ اساسي مواد دګړنۍ ادب په بېلابېلو اصنافو کې مېندل کېږي. سروکي دپښتو د شفاهي ادب دیوه صنف په توګه له دغو موادو بې برخې نه دي، په سروکو کې ځینو تاریخي پېښو ته اشاره شوې وي او سړی ترې پوهېدای شي چې دغې واقعې به په ملت کې خاص ملي، سیاسي او اجتماعي ارزښت او درنښت درلود، د سروکو له تنګ شعري چوکاټ د واقعاتو دبیان حوصله نه لري، بلکه دځینو مهمو تاریخي واقعاتو دخرګندوي په توګه به موادترې ترلاسه کېدای شي . زما تر مطالعې لاندې په تاریخي واقعاتو پورې مربوط سروکي ډېر قدیم نه دي، بلکه زیاتره یې ددوو روستیو قرنو په پېښو پورې اړه پیدا کوي، کېدای شي ځینې داسې سروکي هم ترلاسه شي او یاوي، چې دډېرو لرغونو واقعاتو منعکسوونکي وي، لاندېني سروکي ځینو تاریخي واقعاتو ته اشاره لري :

په خیبر راغله پوځونه * کوی جنګ * تېښته و نه کړی محمدجانه

ورته راکاږه توپونه * ناوګي سومندو رانه کړله * عمر اخانه

شاه عبدالرحمنه زوروره * دشاه غاسي کلادې ولي ورانوله

سپین وړوکي ګل په ناوګي ورژیدنه * پاس په کابل جنګ ددې

ځاځیو و نیول دتورو غرو سرونه * دسمي کورسي جینکۍ ژړاکوینه

**ب ، اجتماعي سروکي:**

په سروکو کې دپښتنو داجتماعي ژوند ځینو اړخونو ته هم إشاري شوې دي، په دې سندروکې دکوچیانې ژوند خصایص، دکېږدیو دژوند مختلفي

---

(۳۵) په ځینو ځایو کې د «دېرنوابه» هم ویل کېږي.

شیبی، دلارو ،غرو ، درو او سر درو او ږده او سترې سفر و نه دشپنو او غو بنو دژ و ند ځانګړ نې، ربړ و نه او کړ او و نه، د کار او زیار مسایل ،دلو اولو ر خبرې او نو ر راغلی دي، په دی خصوص کی لاندی مثالو نه و ګو رئ :

خاو نده مه راولې بیاداسی کلو نه * شو لی شدلی غنم بادو هلی دینه

د سینګړه شو لی په پانو تلی دینه * جانانه لو یی ګډو ه زد ه به‌شینه

دسیږ و شپو ن شوې زه‌دی‌ساتم کومه‌لیاره* ګل له‌شړ پنی راو ږه‌یاره

دغه‌رنګه په‌دغو سندرو کی زمو ږ د کلتو ر مختلف څنګونه هم ځلیږی،لاند-

ینی‌سرو کی د ښځې کلتور دځینو څنګونو په‌باب ځینی‌څر ګندو نی لرې:

زړګره ژ رشه پېزو انجوړ که *سبابه‌ښکلی‌لیلا بل کلی ته‌وړ ینه

میده میده قدم و هی لکه د زرکی * لږه معطله شه ګو در کی

نادانی سپینه دې‌او بې سهین ځنځیر ونه * چې په‌ساتیږی‌ددنیاداد یرغمو نه

زه‌لالی بللی یم*ژ رسی و رکوئ سورې * له شنولوټو سره یی تللی یم

لاږه‌لیلی لاړه* نن بیامیلی ته‌لاړه

ج -عشقی سرو کی:

دسر و کو پیاوړې بر خه دعشق‌او مینی مو ضو عاتو ته‌خاص شوې ده، دامینه کلیو اله‌مینه‌ده، پښتنی مینه‌ده،ددې مینی خصو صیات دښار و نو او نو ر و او لسو- نو له‌مینو بیل دی، په‌دی‌مینه کی در از او نیاز شیبی ، دلیدلو‌سهالو نه،دمینی او عشق تو ل مسایل دجلا شر ایطو مو لو ددی، او ځانګړي مشخصات لری ، چی د ښځې تو لنی له کلتو رې او ر و حی سجایاو و څخه سر چینه نیسی. په دی سندر و کی دمینی بندیز و نه، کړ او و نه،آلام ، در دو نه‌او نو ر خصایص ډیر ښه‌تمثیل شوی‌دی،لاندی به‌زه دعشقی سر و کو څو مثاله و راندی کړ م :

ستاليو نی مینه‌می خوب ته‌نه‌پر یږ دینه * لږ خبر می و اخله جانانه
یار رانه جداشوپه‌لمسون دغمازانو *او ښکی‌سر غلری دي‌تو ئیږی له‌چشمانو
جانانه راشه دیدن وکه * خپه‌زړگی سی‌ښه که * سبابیلتون دی
جانانه ویلی * ته رانه لاړې * زه‌ي وازی پاتی شومه

## دسروکو د تولونگ هڅی

پرسروکو باندی ددې خېړنی په‌بیلابیلو برخوکی دهغو پښتو او ارد و (۳۷) لیکنو، یادونو او څیړنو یادونه وشوه، چی‌پرسروکو یی خبری دیر ـ لوډې. په‌دغو لیکنو او څیړنوکی لږ داسی لیکنی پیداکولای شو، چی‌ښاغلو لیکوالودی په خپلو څیړنوکی نوی سروکی لـه اولسه را تـول کړی وی او پر دغو سروکو دی‌یی خپله څیړنه ښا کړی وی، ددغو زیاتر و ښا غلوګرو ـ یږنی په چاپ شو و سروکو ښا دی .

د سروکو په‌باب‌دڅیړنو او لیکنو دیاد و لوتر څنګه دا لازمه ایسی. چـی دسروکو دټولونګ په‌هڅو هم‌خبری وشی‌او داځرګندەشی، چی‌په‌دی‌برخه کی څومره کارشوی دی؟ چاکړی‌دی؟ .

په همدی تو سن زه په دی برخه کی دهغو کار و نو یادونه‌کوم‌چی دسروکو دټولو لو په‌لاره‌کی ترسره شوی‌دی، هغه ښاغلی‌او مؤسسی‌ښیم ، چی‌سروکی یی ټول کړي او خپاره کړي دي .

۱ـ زیاد معلو ماتو او شتو اسنادو له‌مخی دصو بهٔسر حددضلع‌مر دان دکوتی

---

(۳۷) دسروکو په‌باب چی‌کومی اردو لیکنی شوی، په‌هغو کی‌ځینی دسروکو اردو ترجمی هم لری. لکه: پښتو لوك گیت ، پښتوشا عری ، تاریخ ادبیات مسلمانان پاکستانو هند،ج ۳ ، ۱،پښتو ژبان او رادب کی تاریخ .

سیدمحمدعمر (۴۸) بەلوسړی سړی وی،چی پەدی بر خه کی یی کار کړی دی، او سر و کی یی راټول کړی دی،نو موړی اتیاکاله دمخه دګلشن اشعار افغانی (۴۹) پەمجموعه کی دسر و کو څو نمونی خو ندی کـړی دی .

ددي مجموعی دخطی نسخی لەمخ څخه تر ۱۰۱ مخ پو ری سر و کی دبدلو لو بو او چار بیتو تر منځ پەداسی تو ګه ر او ړل شوی دی،چی مدو ن هر سر و کی دلنډیو پەوسیله بشپړ کړی، او له هر سر و کی څخه یی یوه بشپړه او لسی سندره جو ړه کړی ده .

---

(۴۸) فر هنګ ز بان و ادبیات پښتو ،ج ۱ص ۲۴۲، د۱۳۵۶ش کال چاپ، د تالیف او تر جمی څېر و نه '. پەفر هنګ کی د دغه سړی یادد پو هاند ړښتین د پښتو ادب تار یخ د۱۲۳ مخ له مخی شوی دی ، پەدغه کتاب کی یی کلی ضلع مر دان کو ته ښو و ل شوی،دغه خبر ه سمه ده، او دفر هنګ کو مه مسو ده چی دچاپ لەپاره بر ابره شوی وه، هلته بی هم استو ګنځی کو ته ر اغلی ، خوپه چاپ کی کو هاټ شوی دی،دا یوه تیر و تنه ده، ګر ان لو ستو نکی به له نو موړی کتاب څخه داستفادی پەوخت کی دغه تیر و تنه پەپام کی و لری .

(۴۹) دګلشن اشعار افغانی دو هم جزء ۱۶۸ مخه دپیښو ر داسلامیه کا لج پەکتابخانه کی خو ندی دی،ددی کتاب لنډه پیژ ندنه مر حو م مو لوی عبدالر حیم پەخپل فهر ست لباب المعارف العلمیه کی راو ړی ده(و ګوریء: ج ۱ص ۱۳۸۴، طبع ۱۳۳۶ هق، ۱۹۱۸ع اګره) پو هاند ر ښتین یي دپښتو دادب تار یخ پە۱۲۳ مخ کی دهمدې فهر ست لەمخی یوه لنډه معر فی کړی ده ، خو دمأخذ مخ ا نو ر خصو صیات یي نەدی ښو و لی .

دخو اخو ږی پښتو ن پر و فیسو ر پر یشان خټک پە مر سته ددی مهم کتاب زیاتره برخی پە ۱۳۵۶ ش کال کی د دغی مقالی لیکو نکی ترلاسه کړی ، لەدغه *

۲— تر ده و روسته دسر و کو دتهولولو لهپاره درسمیاتو پهچوکاټ کې کارشوی دی. د پښتوټولنې څېړنو غړو د پښتو داولسي ادب دمختلفو څانګو دټولواوتر ټنګه سر و کې هم راټول کړی دی، او ددغې موسسې لهخوا راټول شوی سرو کې دپښتني سندرې ددو هم ټوك پهپای کې دضميمې پهتوګه ورسره چاپ شوی دی (۵۰) دسر و کو ټول شمير یې ۲۲۲ دی، او دسر و کو دضبط سيستم یې داسې دی، چې پهسر و کو کې یې دلنډيو دویلو ترتيب هم پکې ښوولی دی. دسر و کو دچاپ پهبرخه کې هم دپښتو ټولنې دغه هڅه(زمادمعلوماتو

*ګران دوست څخه پهسننه دایادونه کوم چې: پهنوموړي کتاب کې دڅېړنو داسې شاعرانو شعر و نه راغلي چې تر اوسه د پښتو په هيڅ ادبي تحقيق کې نه یادشوي، او حتی پو هاند رښتين چې ددې مجموعي د شاعرانو دنومونو فهرست هم نشر کړی، پههغه فهرست کې یې هم یادنشته، بل ډيره غوره ښيګڼه یې دا ده چې دغه مجموعه دډير و ښو عشقي او اجتماعي سندرو تر څنګه لهپرنګی سره د پښتنو دبريالي ملي غورځنګ او دپښتنو دميړانې سندرې او ترانې هم لري، چې دپښتو دحماسي اولسي ادب په خيرنه او زموږ د ملي تاريخ پهکښنه کې یې نشو هير ولای .

دریمه ځانګړنه یې داده، چې دغه مجموعه دپښتو ډير ناو یات سر و کې او د لرې پښتونخوا د پکليوالو لنډيو ډيرې ښې بولګې هم زموږ تر لاسه کوي پهتر لاسه شوو سوادو یې ډيرې مقالې ليکل شوي، چې پهخپل وار بهنشر شي .

سر بيره پر دې د مجموعې ټولو نکې هم شاعر دی، او ډيرې خوږې لوبې یې پهدې مجموعه کې خوندي دی، پو هاند رښتين دپښتو دادب تاريخ کې د ده دشاعرۍ اټکل کړی وُ ، دغه اټکل سم دی .

(۵۰) پښتني سندرې ج۲ص ۲۵۱—۳۰۷

له‌مخې) لو سرتي هڅه‌ده ،چې زموږ دشفاهي ادب دغه خوږه او جذابه څانګه دپښتو داولسي ادب‌څیړ و نکو ته‌و ړاندې کوی.ددغی‌متني تر څنګه‌دسروکو په‌دې چاپي کولکښن ځینی خبری هم‌شته، چې‌یادول یې ډلې لازم‌ایسي:

الف، ددې مجموعې تهولو ؤنکو دسر و کو په‌چاپ‌کې زیار نه‌دی ایستلی دپښتو داو لسي شاعرانو دڅار بیتو ،بدلو او بګتیو او لو بو« سر ونه » یې هم پرګډ کړي دي، البته که‌دغه‌ډول سر ونه دډیر و قدیمو شاعر انو دشعر و نو وی، او دشا عر یا نا ظم د شعر او نظم نو زه بر خه یې و ر که وی، او یو ازې «سر » یې دخلکو په‌حافظو کې پاتي وي، نو زما په‌عقیده یې‌په داسی مجموعو کې راوړل— دیوی نښې په کولو سره— څه‌باك نه‌لری ، خو داچې شعر بشپړ په‌اولس کې‌موجود وی، او یوازې «سر » یې د«سر وکی»په‌ډول په‌دغه‌رنګه مجموعه کې راوړل شي ، دغه کارسم نه بر یښي. له عمومي سندرو سره د خصوصي سندرو دګډ ولو معنی لري، او دجامعینو په بې‌غوری دلالت کوی. دسر و کو په‌دې‌مجموعه کې داولسي شاعرانو د ډیرو بدلو، چار بیتولو بو او بګتیو سر ونه راګډشوی‌دی،چې زه ترې دبحث دلنډون په‌خاطر دری نمونی رااخلم :

په‌۲۵۷مخ کې داسر و کی

«تاییاپه‌تو ر و څنبو کې‌ګلان ایښي دی* لیلا په‌ناداغو نه دهجران ایښي دی»

سر و کی نه‌دی، بلکه دمفتي عبدالحنان (۵۱) لو انی (۱۲۶۰—۱۳۲۳ ه ش) د یووی مستي بدلی سر دی ، چې تو له بدله یې بنده لری او داولسي—

(۵۱) دعبدالحنان سوانح په‌پښتانه‌شعر اء ج۳ص ۷۱۷ — ۷۱۹ کې راغلی دی ، ۱۳۴۲ش— پښتوټولنه .

سندری نو می‌اثر پەدو هم تو ك كی‌خو نڈی ده. محمدنو ر (٥٢) (١٣٣٩ هش‌مړ)
هم‌پەڈی و ژن او تو ل یو ەبدله لری چی‌سر یې دلی کاږم:

«تاییاپه‌تو روښنو کی‌گلان ایښی‌دی*او رنګ‌نورنګ‌ډې‌و اړ ده‌په‌لبان‌ایښی‌دی»

په ٢٧٢مخ کی‌داسر و کی:

«ر یدیه‌گله*گله‌ر یدیه*ببو جانی ته‌ډې‌و ړمه»

سر و کی نه، بلکه دشگی د سید کمال (٥٣) دیوی او لسی سندری«سر» دی چی دسندری ډرې بنده‌یی‌ماپیدا کړی دی، او ډاو لسی سندری پەدو هم ټو ك کی خو ندی شوي.

په ٣٠٣مخ کی داسر و کی:

---

(٥٢) دمحمدنو ر پیژ ندنه په‌پښتانه‌شعر اء ج٣ص١٢١٨—١٢٢٠ کی‌شوی ده، ١٣٥٧ش— پښتو ټولنه .

(٥٣) سید کمال دشگی او سیدو نکی ؤ (١٢٥٠ ﻫ) له‌ببو جانی سر ەیی دمینی داستان په‌او لس کی شهرت لری. داشعار و دیو ان ترې پاتی دی ، یو ەنسخه یې‌ښاغلی در دمند تر لاسه کړی‌و ە، او د کابل مجلی د٣٤٨ ١ش کال په ٧گڼه کی‌یې یو ه لیکنه پر کړی ده. دده‌بشپړی سو انح لوښړی ځل‌نوښیالی‌لیکوال‌او پوه ار و اښاد استاد قیام‌الدین خادم (١٣٥٨ ش‌مړ) کښلی وې ، چې پښتانه شعر اء ج ٢—طبع پښتو ټو لنه ١٣٢١ش یی هم‌مفصلی سو ا نح ر او ړی‌دي، دسید کمال‌او ببو جانی دمینی دقصی یو اجمال دده له‌ښایسته ز یاتو سندر و سر ه ذعبدالجمیل‌ز اخیل په‌مانو گراف کی‌هم‌راو ړل شوی‌دی(١—٣مخونه) استاد خادم دو ږمی مجلی د١٣٣٩ کال په ١گڼه او دنوې ر ڼاپه ١٤—١٨مخونو کی د«سید کمال او ببو جانه» تر سر لیك لاندی ددې دو اړ و مینو دمینی قصه خو ندی کړې‌ده.

«و او ړه را او او ړه ببو یاره نای نای »

سر و کی نه، بلکه دسید کریم (۴۵)نو می او لسی شاعر دیوی سندری د«سر » دو هم نیم بیتی دی، چی زه یی بشپړ «سر » په لاندی ډول لیکم :

داستاد ښکلی مخ دیدن کوم په غلا * و او ړه را او او ړه ببو یاره نانا

داهم کیدونلری، چی شاعر دې «سرو کی» په خپله بدله کی د مطلع په توګه را اخیستی وی.

ب، دسر و کو ناسم یاناقص اشکال راوړل: په دې مجموعه کی داسی سر و-کی هم شته، چی په ناسم یاناقص شکل را وړل شوی دی، له ډیرو مثالو څخه یې څو مثاله دادی :

په ۲۰۵ مخ کی داسر و کی :

او ر دی میر عالمه کوکی میر عالم جانه *دسپر و در غلل پو څونه * مال او ر دی سر بیره پر دې چی یی دفو رم له پلوه دثبت شکل سم نه دی، په ډیره ناوړه بڼه هم راغلی دی، اصلی بڼه یی دادی:

کمکی میر المجانه * نن او ر دی

دسپر و در غلل پو څونه * نن او ر دی (۹۵)

---

(۴۵) دچار بیتی نو سی قلمی اثر په ۷۰ پانه کی یی دسید کریم په باب داسی ښکلی ږی:« سید کریم دسیداحمد زوی د خوست خان لمسی په ۱۲۶۵ ع کال په جندول کی زوکړی، او په ۱۹۳۳ ع کال دمر دان په جلاله کی مړ شوی دی». دغه قلمی کتاب دپښو ر دپښتو اکاډیمی په خطی کتابو کی په ۹۳۱ نـو مره ثقید دی .

(۹۵) وګوری: فرهنګ خلق، ددوهم کال ۱-۲ ګنه، ص ۱۴، هم شهید هم غازی، دلوی استاد پو هاند عبدالحی حبیبی مقاله.

په ۲۰۵ مخ کی داسر و کی :

«پانی دگو رگو ری—او ه—نری‌نری او به ر اځی ما ډو بو ینه —
پانی دگو رگو ری »

دلته دوه سر و کی سره گډشوی ،او په‌مسخ شوی شکل تری په‌لو ړه بنه یو سر و کی جو ړشوی،چی یو پاړ کی یی‌له‌بل سره‌نه‌لگیږی، ددغو سر وکو اصلی بنی دادی :

پانی دگو رگو ری * نری کمیس یی‌د فانو س ر نړا کو ینه
نری نری او به راځی ماډو بو ینه * لالیه گل سی‌و اخله

په ۲۶۲ مخ کی دا سر و کی :

«چر گان و هی‌بانگو نه * اشنازماله‌غیږی ځی سږاوی ښانگونه»

په‌ناقص شکل ضبط شوی‌دی، بشپړ سر و کی دادی:

«سهارسبا*چر گان‌و هی بانگو نه* اشنازماله غیږی ځی سږ اوی ښانگو نه»

په۲۶۳ مخ کی‌داسر و کی:

«ښنگ‌ته‌دې‌در ځمه* خانه‌جب‌دې‌لټو مه* تاماته‌له‌خیالی باز اره ښه ر او ړ یدینه* خانه جب‌دی‌لټومه

ددې‌سر و کی په فو رمی جو ړښت کی ناو ړی‌لاسو هنی شوې‌دي، دسرو کی ر و انی یی‌له‌منځه و ړی‌او سُکته کړی یی دی، سر بیره‌پر دی دغه سروکی په خپل‌جو ړښت کی‌دری‌پاړ کیز سر و کی‌دی ، او دوی‌ترې‌څلو ر پاړ کیز سر و کی جو ړ کړی دی، اصلی بنه یی‌داده:

خانه‌ښنگ‌ته‌دې در ځمه* جب‌دې لټو مه* تاله‌خیالی باز اره ښه‌ر او ړی دینه

داهم دو یلو ده، چې‌دغه‌سر و کی په‌ر ادیو کی‌هم غلط ثبت‌شوی‌دی ، او د سر و کی دپیل «خانه»یې و رځنی غو رځو لی دی.

په ۲٦٦ مخ کی داسر و کی :

داگر دچاپیره په‌غر و نو او ری‌بار انو نه یاره، ږلی او ر یږی نا— مه‌څه دلته شپه و که— پاتی‌شه باران دی

لو ړسر و کی په‌دغه‌و ران و یجا ړ حالت کی‌هیڅ خو ند نه لری ، ځکه چی ډیر یی سره خوار و زار کړی‌دی ، کوم شکل چی یی ماته معلوم دی ، دلی کښل کیږی :

راځه‌راځه‌زماښیلمه شه یاره* ږلی او ر یږ ینه * مه ځه دلته شپه و که * پاتی‌شه باران‌دی .

ج، ددې مجموعی دسر و کو پاړ کی په اصلی شکل نه‌دی سره ښیل شوی سر و کی یی ډیری ګډو ډی او و رانی لری، په‌د ی خصوص کی‌زه له‌همدی مجموعی‌څخه په‌لس‌ګونو مثالو نه راو ړلی شم،خودبحث‌دلنډو ن په‌خاطر و ر څخه تیر یږ م ، لاندی یو مثال و ګو رئ:

ګل‌مکی و ز یری، منی په‌جب کی‌ګر ځوی* په‌ز ړه‌ظالمی دژ نو جمعی ړ نګوی

دغه‌سر و کی په‌دوه‌پاړ کیز شکل ضبط دی، حال داچی ماته ددې سر و کی دوه شکله معلوم دی، چی په‌یوه شکل کی‌یې فو رمی‌جو ړښت‌څلو ر پا ړ کیز په‌بل هغه کي یی دوه پاړ کیز دی، لاندی یې څلو ر پاړ کیز فو ر م و ګو رئ:

ګلمکی و ز یری * منګی دی کوم ګو د رته و ړی * په ز ړه ظـالمـی * دژ نو جمعی‌نګو ی.

په‌ځینو سیمو کی‌یی در یم پاړ کی«په‌لالی مینی » هم و یل کیږی .

د، دپښتنی سندری ددو هم ټو ك پر سر و کو دښادی بدلی ، او داتن بیتو نه هم‌و ر ګډشوی دی . سو ړ دخپل شفاهی ادب په‌عمو می سندر و کی ډیری‌داسی سندری لر و ، چی ښایی دفو ر م له پلوه مشابهت سر ه‌و لري، خو هر ه‌سندره باید

خانته مطالعه شي، او گډول يې زما په فکر سم نه بر يښي، په دې برخه کې لـــه ډير و مثالو نو څخه تير يږم او په څو محدو دو مثالو نو اکتفأ کوم لکه :

په ۲۷۰۹ مخ کې دوهم سر و کی، په ۲۸۳ مخ کې لومړی سر و کی، په ۲۸۴ مخ کې دريم سر و کـــی، او په ۲۹۰ مخ کـــې د و هم سر و کــی او نو ر ... سر و کی نه، بلکه دعمومي بسندرو نو ر اقسام دی .

۳ــ دسر و کو دټولو لو په لړ کې چې کوم کار بښاغلي محمدعالم اتمان کړی دی، تر هرچا زیات او د ډیري مننې و ړ گــانه شي . نوموړی په پښتو کو نو کې دسر و کو مجموعي برابری کړي، چې زه يې لاندی له ښېگڼو ا و پد گڼو سره بښيم :

الف: ملي موسيقي يا پښتني سندری : دښاغلي اتمان له خوا دراټولو کړ و سر و کو لو مړ نی مجموعه ده، په دې مجموعه کې ۱۰۰ سر و کی راو ړل شوي په هر مخ کې يو سر و کی راغلی ، او هر سر و کی کې يې پکې دلنډيو په وسيله بشپړ کړی دی، دمجموعی ټول مخونه ۱۰۰ دي، او دبشپړ يدو کال يې ۱۳۴۳ ش دی، او ښاغلی اتمان پرې دخپر نملی علمی درجې ته ترفيع هم گټلې ده (۵۶)

ب: دسيني جهان: دسر و کو دټولو نگ په سلسله کې دښاغلي اتمان دهڅو بل پړ او د «سيني جهان» په نــامه دسر و کــو د څلو رو مجموعو په راټولو ولو پيل کيـږی ، دد غو مجموعو هرتــوك ۲۰۰ مخو نه لـری ، او په هر مخ کې يې يو ــ په لنډيو بشپړ شوی ـ سر و کی راغلی دی .

---

(۵۶) د ښاغلي اتمان دغه اثر دپښتو ټولنی دخطي اوعلمي نا چاپو آثا رو په سلسله کې په ۳۴ نومره خوندی دی .

دڅلورو سروتوکونو دمخونو شمیرېږي ۸۰۰ او دسروکو شمیر یې هم ۸۰۰ دی(۵۷)
د دغو څلورو اړو توکونو د بشپړیدو کال ۱۳۴۹ ش دی.

دملي موسیقي یا پښتني سندري په شمول دسروکو د دغو پنځو واړو توکونو دسروکو مجموعي شمیره (۹۵۵) ته رسیږي، په دې سروکو کې د پښتنې سندري دمجموعي چاپي سروکي هم راغلي دي، دلومړنۍ مجموعې په پیل کې یې مقدمه یا یادونه نه لیدل کیږي.

خو دمیني جهان دلومړي توك په پیل کې یوه څلور مخیزه تایپي مقدمه گوته هم شته، چې دسروکو په سندریز و ارزښتونو یې خبرې پکې کړې دي .

دسروکو دټولونگ په هڅو کې د ښاغلي اتمان هڅه مشکوره ده، خو د دغه شکران ترڅنگه دسروکو په دغو پنځو واړو مجموعو ځینې خبرې او یادونې هم شته، چې د دغو یادونو په باب له ډېرو زیاتو مثالونو څخه خو محدود مثالونه دلې راوړل کیږي :

لومړی— دسروکو په دغو مجموعو کې هم د اولسي شاعرانو دچاربیتو بدلو، بگتیو او لوبو «سرونه» دسروکو په بڼه راغلي دي، او دسروکو په چاپ کې یې ستونزه پر ځان نه ده منلې، څه چې مخې ته ور غلي دسروکو په نامه یې په خپلو مجموعو کې خوندي کړي دي :

دملي موسیقي یا پښتني سندري په ۱۲۱ مخ کې دا سروکی:

« مسته دې تازه گرځي * غم یې په لالی باندی »

---

(۵۷) دمیني جهان څلورم سره توکه دپښتو ټولنې د ناچاپو آثارو په لړ کې تر ۳۶ نومري لاندې قیددی، ښاغلي اتمان دسروکو ځینې نمونې له یوې لنډې تبصرې سره د فولکلور مجلې د لومړي کال (۱۳۵۲ ش) په ۲-۳ گڼه ۳۹-۹۱ مخونو کې چاپ کړې هم دي.

دعلی احمد (٥٨)نو سی او لسی شاعر (١٣٤٨ ش سړ) دیوی اولسی بدلی دسریو پاړ کی همدا لوړسر و کی دی ،چی ده ته په غلطه بڼه و ر رسیدلی، اوده ورځخه په ناسم ډول دوه پاړ کیز سر و کی جو ړ کړی دی، دهٔدلی سر دادی :

تو ری ستر گی سر ه لاسو نه سپین مخ سپیده گر ځی

غم دی دلالی پهٔسر مسته دی تازه گر ځی

دغه بدله پنځه بنده لری ، په ناقص شکل په ر ادیو کی ثبت شوی هم ده ، د نغمو کار و ان مؤ لف نه ده ر او ړی،خو همدغه ناقصه بڼه یې د«ر ادیو سندری» ر اټو لو و نکو پهٔخپله مجموعه کی اخیستی ده (٥٩) بشپړ ه بدله د اولسی سندری پهٔدو هم ټوك کی خو ندی ده(٦٠) .

دسینی جهان پهٔج ٢ ص ٢٨٧ کی داسر و کی :

«ز ړه سی شو ذری ذری*خپل و طن کشمیر دی ما پر دی و طن ته چیری و ړی * ز ړه سی شو ذری ذری »

سر و کی نه دی، بلکه دمفتی عبدالحنان دیوې بدلی سر دی، چی ښاغلی ټو لو-و نکی یی دو هم پاړ کی مخکی کړی، او بیایی پهٔتکر اری ډو ل ددر یم پاړ کی پهٔتو گه هم ر اوړی دی،دغه بدله دعبدالحنان ددیو ان پهٔ هغه خطی نسخه(٦١)

---

(٥٧) فر هنگ ز بان و ادبیات پښتو ج ١ ص ٣٤٠ — ٣٤١

(٥٨) و گو ری! دمجمو عی ٥٥ مخ ، ١٣٥٢ ش کال ، دغه مجمو عه ښاغلی سیدعالم او کمال الدین ر اټو له کړی ده .

(٦٠) داو لسی سندری پهٔدو اړ و ټو کو نو کی د پښتو دډیر و او لسی شاعر-انو بدلی، چار بیتی، لو بی او داستانو نه ر ا ټول شوی دی .

(٦١) دعبدالحنان داعی خطی کلیات ص ١٩٤ — ١٩٥ .

کې هم خوندی ده، چې په ۱۳۳۳ ش کال پښتوټولنې ته راوړل شوی، او اوس دعلومو اکاډیمۍ په خطي کتابونو کې ساتله کیږي، بدله ۶ بنده لري، چې مطلع او دپای بندیې لاندې راوړم :

خپل وطن کشمیر دی، ماپر دی وطن ته چیری وړې
زړه مې شو ذرې ذرې

* * *

خپل وطن کشمیر دی په کابل کې مې زړه تنګ شونا * بخت راسره جنګ شو نا
بخت ویلې حنا نه تو کې سره کړه مسخرې وړې * زړه مې شو ذرې ذرې

دسینې جهان په ج ۳ ص ۴۷۸ کې داسر و کې:

«په سپینو لیچو کې دې شور کوي بنګړي * سور پیزوان دې اثري * عاشقان دې لیونې کړه»

سرو کې نه، بلکه د«بزې» منګل او لسې شاعر دیوې بدلې سر دی (۶۲) دریم پاړ کې یې ښاغلي اتمان ته په غلط شکل ور رسیدلی دی او ده هم ناسم ضبط کړی دی، سم شکل یې داسې دی: «عاشقان دې لیونې کړي دي»

دوهم، مکررات: ښاغلي تولو ونکي دسرو کو دشمیرې دزیاتې ښودنې له پاره ډیر سرو کې دجزیي تفاوت په لرلو سره مکرر هم راوړي دی، ښه به داوای چې ده ددغه ډول توپیر لرونکو سرو کو یوشکل داصل په توګه په متن کې راوړی وای، او نور اشکال یې په لمن لیکونو کې ښودلي وای، خو نه پوهیږم چې په کوم منظور یې دغه کار کړی دی؟ ددغو مکرراتو څو محدود مثالونه لاندې وګورئ:

---

(۶۲) داو لسې شاعر ښاغلي حکیم نورپه منه.

دملي موسيقي ياپښتني سندرې په ۱۰۶، ۱۰۷ مخو نو کې د «مستې منگۍ پرو رې» سروکي مکرر راغلي، يوځاى يې بشپړ اوبل ځاى يې ناقص راوړى دى

دميني جهان په ج ۲ ص ۲۸۰ او ۲۸۱ کې د «ز رزرې چپنه » سرو کي مکرر راغلي دي .

دميني جهان په ج ۳ ص ۲۹۵، ۲۹۶ کې د «بانه دجلندر دی » سروکې مکرردي د همدې توک په ۵۱۸، ۵۱۹ مخو نو کې «ستا په يارانه زمو ږ و راني شوې ديرې». مکرر راغلي دي .

دريم، ناقص ضبط: دسر و کو په دغو مجموعو کې ځينې سرو کي ناقص او نيمگړي ضبط شوي دي، دبحث دلنډو ن په خاطر يې دا يو مثال وگو رئ :

سال زانې *له او بو راغلي *زانې (ملي موسيقي ص ۳۰۱ )

ددغه سرو کي بشپړ شکل دا دی :

زانې له او بو راغلي*زانې* که زانې نه وې شني کوترې له باغو راغلي*زانې

څلورم: دسرو کو په دغو پنځو وارو ټو کو نو کې داتن نارې، او دبنادې يدلي هم په سرو کو گډې شوې دي .

دبناغلي اتمان زيار په خپل ځاى د ستاينې وړ دی ، که چيرې مکررات او اضافات ځنې حذف شي او چا ن پکې وشي ، بيا هم دسرو کو ۷۰۰ بولگې ترې تر لاسه کيږي .

۳ـ دسروکو دټولو لو په لړ کې دپښتو داولسي ادب دځوان څيړونکي ښاغلي عبد الکريم پتنگ زيار د ستاينې او منني وړ دی ، ځکه د ده څه په معاش او ياعلمي ترفيع پورې اړه نه لري، بلکه له پښتني کلتور او پښتو اولسي ادب سره دده دميني څرگندويه ده. نوموړي هم دسرو کو يوه مجموعه برابره کړې چې، په ۱۳۵۸ ش کال خپره شوې ده، دغه مجموعه «سروکې» نوميږي.

او پهځانګړې ډول دسرو کو لوسرنې چاپي مجموعه ده چې يوازې سرو کي دپښتو داولسي ادب مينانو ته وړاندې کوي .

ددې مجموعې بل ابتکاري اړخ دادې، چې سرو کي دپاړکو پهاساس پکي و يشل شوي،او هر سرو کي نو مره لري، او دسرو کو شميره يې ۶۲۰ ده . دسرو کو پهدې مجموعه کي د ټولو ونکي دراټولو کړو سرو کو ترڅنګه دچاپي مجموعَو سرو کي هم راوړل شوي (سريزه ص د) خو زمادخيړ نې لهمخې د چاپي مجموعو ډير سرو کي پکې نهدي راغلي.

دسرو کو پهدېمجموعه کېتر ډيره حدة هځه شوي، چې په راټولو کړو سرو کو کيچاپ و شي،داولسي شاعرانو دا شعارو او نظمونو «سرو نه» پکي رانهشي ، او داتېن نارې او نورې عمومي سندرې هم پرګډېږ نهشي ، خو بياهم ځيني دغهډول تيروتني، دپاړکو ناسم و يشاو مکرر رات(۶۳)لرېددغو تيرو - تنو ځيني نمونې لاندې وړاندې کيږي :

الف، د۲مخ ۱۵ نومره سرو کي په۴۲ مخ کي تر ۲۸۲ نومرې لاندې مکرر راغلي دي .

ب، په ۲۰مخ کي ۲۳۱ نومره سرو کي څلور پاړ کيز دي، خو ده په دوه پاړ کيز و سرو کو کي راوړي دي. دمجموعي په۴۲ -۵۹ مخونو کي څلور- پاړ کيز سرو کي راغلي دي ، پهدغو سرو کو کي ځيني سرو کي څلورپاړ- کيز نهدي ، بلکه په تکرارې بڼه څلور پاړ کيزسروکيځني جوړيږي ، ښه به دا وای، چې دسرو کو دتأليف داجز او ولهمخې په خپل ځای کي راغلي وای دغې نقيصې تهښاغلي مؤلف هم په خپله سريزه (ص د) کي اشاره کړېده.

(۶۳) دغه سرو کي تر چاپ دمخهښاغلي مؤلف ماته دکتني لهپاره راسپارلي وو ، ګوسي تېر وتني چې لرې،دهغو پره پر ماهم ده.

ج، دبنادی بدلی هم‌ځنی پرګڼی شوی‌دی، لکه د.۱مخ ۱۱٦ نومرەسروکی د۱۸۰مخ ۲۱۲ نومره سروکی، د۳٦٥ مخ ٤٤۸ نومره سروکی اونور....

٥— موتېروس ګریګوروېچ اسلانوف (۱۹۷۷ ع مړ) په خپل پښتنی‌فولکلور (٦٤)(په‌روسی‌ژبه) نوی‌اثر کی ځینی نیمکی چاپ کړی‌دی (٦٥) او دنغمو کاروان مؤلف هم په دغه کتاب کی درا دیو د سند رو غاړو په آوازونو کی ځینی ثبت شوی سروکی را اخیستی دی، خو له‌دغو دوو سر و اثرونو څخه په وروستی کی سروکی زیاتره تکراری دي، او نوی سروکی ډیر ناڅیز پکی میندل کیږی.

٦— دپښتو ر دپښتو اکاډیمی پښتو مجلی هم کله ناکله په خپلو پاڼو کی‌د پښتو راوصو به‌سرحد دسیمو په‌اوسیدو نکو پښتنو کی موجود سروکی‌چاپ کړی‌دی (٦٦).

۷— پروفیسو رمحمدنواز خان طایرد«باغ و بهار» (٦٧) په‌نامه یوې مجموعی کی دبدلو، چاربیتو اولوبو ترڅنګه نیمکی هم راټولی کړی‌دی، او پر نیمکیو یې دپښتو رچاپ په‌پښتو مجله کی‌یو لیك هم کړی‌دی(٦٨).

۸— دپښتو داولسی ادب‌زیارګالونکی او پر کاره لیکوال څیړنمل‌علی-

---

(٦٤) داسلانوف دغه رساله دختیځ پوهنی د انستیتوت په پنځمه مجموعه کی چاپ شوی‌ده، ص۳٤۲،طبع ۱۹٤۹ ع.

(٦٥) وګوری‌ع : دځلو ینبتو کالو په دوره کی شوروی افغان پیژندنه ص۱۰۲، د۱۹٦٠ ع کال دمسکو چاپ.

(٦٦) پښتو مجله د۱۹٦۹ ع کال داپریل ګڼه،پښتو ر— پښتو اکیډیمی.

(٦٧) دپروفیسو رمحمدنوازطائر «باغ و بهار» نه دی چاپ شوی، خطی مجموعه یې‌له‌نوموړی پروفیسو رسره خوندی ده *

محمدمنګل د پښتو د اولسي ادب دنورو اصنافو د ټولو لو تر څنګه سروکي هم راټول کړي ، او په متفرق شکل يې خپاره کړي دي . په فولکلوري ګيډې اولسي پوهه، کابل مجله ، پکتيا مجله کي چي ده پر سروکو څه کښلي او يا کومي نموني يې خوندي کړي، د هغو ياد ددې مقالي په څينو برخو کي وشو .

* * *

دلي هغه مقاله هم يادېږي،چي په ۱۳۵۹ ش کال کي کابل مجلي په دوو قسطو کي خپره کړي ده (۶۹).

په دغي ليکني کي ليکوال د(۱۵۰) په شاوخوا کي سروکي راټول شوي ،او د کابل مجلي په دوو ګڼو کي خوندي شوي دي .

دغه سروکي هم ګډوډي ز ياتي لري، ښاغلي ليکوال يې چاڼ ته ز ياته پاملرنه نه ده پکي کړي ، مګر رات پکي شته، او نوري عمومي او خصوصي سندري پر ګډې شوې دي، د همدې ليکني هغه برخه چي د کابل مجلي په ۱۰ ګڼه کي چاپ شوي ، په ۵۳-۵۶ مخونو کي چي کومي سندري د«ناوي يادونه» تر سرليك لاندي دسروکو په نامه خوندي دي، سروکي نه،بلکه دښادي او واده مخصوصي سندري او بدلي دي، چي داولسي ادب محققين يې په سروکو کي ،نه بلکه د اولسي ادب ديوه جلاصنف په توګه څېړي .

دغه راز ښاغلي ليکوال چي تر ۱۰۲ کوچنيو موضوعي سرليکونو لاندي سروکي دلبندي کړي دي ،زما په ګمان دموضوع له اوږدولو پرته بله ګټه تري متصوره نه ده، او دتاريخي ، اجتماعي او عشقي سروکو تر سرليکو نو لاندي دغه ټولي کوچني ډلبندۍ مطالعه کيدلای شي .

---

(*۶۸)وګوري: پښتومجله د ۱۹۷۶ ع کال دفروري ګڼه -پيښور-پښتوا کيډيمي .

(۶۹) کابل مجله د۱۳۵۹ کال ۹ ګڼه(۸۵-۹۹ مخونه) . ۱۰ ګڼه ۵۳-۵۶ مخونه.

۹ـ ښاغلی بسم الله حقمل په «دتنيو د کلتو ر او فو لکلو ر خيړ نه» نو مي اثر کی د پښتيادخو ست دتنيو دسيمی څينی سر و کی ر اټول کړی، اوپه دغه مجموعه کي یي د«سر و کی او بيتو نه» تر سر ليك لاندی خو ندی کړی دي .
د د ی مجمو عی د سرو کو په نامه د خوندی کړو سندر و شمېره (۵۰) ده . (۱۱۵-۱۱۷ مخو نه )دغی مجموعی په سرو کو هم نوری سندر ی ګډ ی شوې دی . لکه په ۱۱۵ مخ کی: «جار دره ګی خا لی دی ، جونه غر وته تللی دینه» سرو کی نه بلکه پړ ا که ده .
۱۰ ـ دغر نی سندری سُر و کی: څيړ نمل محمدعارف غر و ال ددغه کتاب ښاغلي مؤ لف هم د پښتيا دځاځيوله غر و او در وځخه د پښتو داو لسی ادب دغه سندری، او داو لسی شاعر انو دو ر کو سندر و « سر و نه » راټو ل ، او په دغه مجموعه کی یې دسر و کی او« بيتو نه» تر سر ليك لاندې خوندی کړی دي . د ده راټو ل کړی سر و کی ز ياتره دوه پاړ کيز دي، دسر و کو له يادو شو مجموعو سره لږ تکراری سرو کی لری (څينی سرو کی یې د پاړ کو جوړښت له پلوه مختلف هم دی).
دګر ان غر و ال دغه راټو ل کړی سر و کی دسر و کو دټو لو لو -دلړيِ يوه کړی بشپړ وی، او هيله ده، چی د پښتو داو لسی ادب دنو ر و څيړ و نکو کار دغه اوږد ځنځير نوري کړی پسی بشپړې کړی .
سر و کې دې څنګه د و ل ضبط شي ؟

داڅو ه داسي پو ښتنه ده، چی نه يو ازی دسر و کو دضبط په باب مطرح کيږی بلکه داو لسی ادب دټو لو ژانګو دضبط په مو ر د کی مطرح کيدای شي! ځو اب یې هم و اضح دی، او هغه داچی لکه ماغوندی له يوه مبتدي فو لکلو ر څيړ ونکی نه نيو لی ا ن تر لو يو فو لکلو ر پو هانو پو ر ی ټو ل په دی بر خه کی په يوه

خو له‌دی، او دارایه خرگندوی،چی دعامیانه فرهنگ ټولی خانگی دي بی لاسوهنی په پوره امانت داری په‌اصلی بڼه ضبط شی !

خو موږ ټولو لیدلی چی دغه ډول ادبیات زیاتره په خپل شکل نه‌دي ضبط شوی، دسرو کو دضبط په‌برخه کی هم‌دغه ډول چلند شوی‌دی، زموږ په‌اولس کی سرو کی معمولاً دسندرو غاړو او یادکلیو او بانډو دنرو ښځو له‌خوا له محلی سازونو سره ویل کیږی.

و یونکی دخپل مجلس دشو راو خوند رنگ دښه‌کولو له‌پاره دو ینگ په مهال کی‌ځینی آوازونه ،لکه (و ،اوه،مال،وی،یا،و الله ،ځار، گله،د،هی او ....) دسرو کو په مختلفو پړاو کو کی ورزیاتوی ، دسرو کو کومی چاپی اوناچاپی مجموعی چی‌مالیدلی‌دي،ځینوښاغلوخیړ ونکواو ټولو ونکو دغه ډول اضافی سوابق او لواحق دځینو سرو کو په‌پاړ کو ورننبلولی دي ، چی دغه اضافات دسرو کو دتألیف په اجزاو و کی شامل نه‌دي، او دوی ور سره دشاملو توکو نو په‌توگه ضبط کړی‌دی. په‌دی باب لاندی څو محدود دمثا لو نه وړاندی کوم :

(مال) اوردی* اوردی‌عالمه* ترشادوړاندی* (اوی)لیلا ځان سینگارینه* بل اوردی

(ملی‌موسیقی یاپښتنی‌سندری ص ۱۰۵)

(و )په‌بام‌و لاړی‌شین‌خالی*(و ) شلگر ته‌تیتی شوی غدی

(ملی‌موسیقی ص ۱۴۹)

خوږی مماني(وی ) ترخی دي‌پاني ..... ( دمینی جهان ج ۱ ص ۱۹۱)

جمدانی لمنی غونډه‌ به دي وړمه * راوابه دي ړومه * (زار) جمدانی

( د پښتـــــــــــــو د ا ولســــــــــــی ا د ب لا ر ی ص ۸۴ )

غر و تەبانەی لاړی * (وی) لیلاپەلو ړو غر و کی گل کر لی دینه

(دسینی جهان ج ۳ ص ۳۰۳)

دتو ر او ر بل (وی) سخی تەبەنیسه لاسو نه* چی زەدې شمار کم(یا) دلنەی (وی) ز نی خالو نه (وی) ز نی خالو نه

(کابل مجله، ۱۳۰۹ کال ، گنه ص ۷٦)

(بیا) نری یې پانی* شاەلیلاو نه دبادام(سر و کی ص ۲، ۱۲ نو مره سر و کی)

زماپه عقیده که چیری خوك دسر و کو دو یلو طر ز او طر یقه شبیي،نو که دغەډو ل اضافات و رسر ه پەقو سو نو کی ر او ړی ، بده به نەوی خو که چیری یو ازی دسر و کو ضبط مطلب وي، نو بیاذدغەډو ل اضافاتو ر او ړ ل سم نەدي او دسر و کو دمغشو شېدو لارهو اروی .

« ۳ »

## د اتڼ دمېدان بېتو نه

اتڼ او نڅا په آر يايي ټولنو کې ډېر ه قديمه سابقه لري،دو يدي دو ري متو نه او در يگو يدسر و دو نه داتڼ په باب يادو ني او خبرې لري، او په آر يائيانو کې دغه دو د عام بو لی.

داتڼ کو م ر و ايات چې له و يدي دو ري سو ږ ته ر اپاتې دي ، دهغو ر و اياتو حکايات او س هم ز مو ږ په پښتني ټو لنه کې صدق پيدا کوی. داتڼ او اتڼ چيانو هغه خصا يص چې د هغې دو رې ستونو شرح کړي، ز مو ږ په غرو ،اود رو کې ليدل کيږی. گر ان ليکو ال محمدعارف غر و ال دخپل دغه په ز ړه پو رې تأليف په در يمه بر خه کې داتڼ دسيدان بيتو نه ر او ړی دي،او داتڼ په ډو لو او اشکالو يې ډېر څه نه دي ويلی، نو زه هم دلی داتڼ پر ډو لونو ،په مختلفو پښتني قبيلو کې داتڼ په خصايصو او نو سو نو څه نه و ايم ،بلکه تر يوی لنډې يادو نی و ر و سته پر دغو نار و څو خبری کو م :

اتڼ له ډيری پخو ازمانی څخه تراوسه ز موږ په خلکو کې د ر ز م او بزم ديو ه ملی سمبو ل په تو گه شته. پښتانه دخو ښيو او ښاديو په سر ا سمو او سيلو کې اتڼ کوی دجنگ سيدان ته هم په اتڼ ورځی،او ز مو ږ د کلتور ديوه نه بېليدونکی جز ء په تـو گه د پښتنو په ملی عنعناتو کې نغښتی دی، اوپه اتڼ کې نراوښځې دو اړه بر خه لری .

له پښتنو سر ه په گاو نډ کې پر اته ځينې نو ر قو سونه ،لکه بلو څان ،براهو يان (۷۰) پشه ئيان او نو رستانيان (۷۱) هم اتڼو نه او محلی نڅاوی لري، چې ددغو

---

(۷۰) بلو څان اتڼ ته در يس، او بر اهو يان و ر ته چاپ و ايی .

(فو لکلو ری سو غات ص ۱۲ ) .

(۷۱) د پشه ئيانو او نو رستانيانو داتڼو نو ځينی ډو لو نه هم مخصوصی سندرې لری .

خلکو داتې ځینې ډولونه په‌حرکاتوکي‌له‌پښتنې اتڼو نو سره و رته‌والی‌هم لري ـ

په‌اتڼ کې‌دسندر و و یلو روایت هم‌قدیم دی ،چې ترمیلا د ۱۵۰۰ کلو دمخه زمانې ته‌رسیږي، پښتانه‌داتڼ په بیلابیلو ډولونو کې داتڼ دځو بڼ او خر و بڼ له‌پاره سندري بولي .

دپښتنې فولکلور په‌خیړ نوکې مرحوم غلام‌جیلاني جلالي (۱۴۰۰ هق‌مړ) داتڼ دځلو رو ډولو بدلي ښوولې دي(۷۲).

مرحوم نوري (۱۳۵۲ ش مړ )داتڼ «لس ډوله»ښوولي دي(۷۳)خپړنمل ـ محمد دین ژواک دپښتني سندري دلومړي ټوک په مقدمه (۷۴) ښاغلي رفیع په‌خلکو سندري (۷۵) کې‌هم داتڼ دغه لس ډوله‌ښوولي‌دي، خوپر و فیسور ولي محمدخان سیال کاکړ چې په فولکلوري سوغات(۷۶) کې داتڼ کوم

---

(۷۲) وګوری: ٤ طلوع افغان ، کال ګڼه، ۱۳۱۷ش، ص۱۵—۱۶،د۱۳۵٦ کال دوږمی مجلی د ۲ ګڼې په ۱۵۰—۱٦٥ مخونوکی‌دملی اتڼ په‌نامه یوه مقاله خپره شوې‌ده او دمجلي چلوونکو و رته کښلي چې:دکابل مجلې دپښتوکیدلو دلومړنیوکالو نوله‌ګڼو یې اقتباس‌کړی ده .

په دغه‌مقاله کې‌هم داتڼ ځینې بدلی راوړل شوي، چې‌ځینې داتڼ‌ناري او نوري یې «سرونه » دي، ځینې ناسمې بدلي هم‌پکې شته. سربیره پردې په‌دې لیکنه‌کې زیارایستل شوی، چې‌اتڼ نڅا، نه بلکه ورزش وښیي ؟

(۷۳) وګوری‌؛! کابل‌کالنی ۱۳۲۲ش‌کال ، ص ۲۵۸ـ ۲۵۹ .

(۷۴) پښتنی‌سندری‌ج۱،مقدمه، ص(و) ۱۳۳۱ ش‌کال چاپ ، پښتوټولنه ـ

(۷۵)وګوری‌؛! د خلکوسندری ص۷۱.

(۷٦)وګوری‌؛! فولکلوری سوغات ص۲۵ ـ۳۴.

ډ و لو نه را پیژ ندلی تر لسو ز یات دي، او هغه لیکنه چی د«اتڼ بیتو نه »تـر سرلیک لاندې دپکتیا مجلی په یوه تازه گڼه کی چاپ شوی، هو ری داتڼ پنځلس ډ وله ښوو ل شوی دی (۷۷) دغه رنگه ښاغلو خیړ نمل علی محمد منګل په کابل مجله (د۹ ۱۳۵ کال ۶، ۷-۸ گڼو) کی، عبدالکر یم پتنګ په غرو نو- څو کی (طبع ۱۳۵۹ش) او بسم الله حقمل په « د تنیو د کلتو را و فو لکلور- څېړ نه» نو می اثر کی دخپلو سیمو د نار ینه‌و و داتڼ مختلف ډو لو نه ښو و لي چی د نارو د خو ندی کو لو له حیثه وروستنی دوی لیکنی د کو می خاصی یادو نی وړ نه دي مگر د اتڼ کوم ډو لونه چی یی ښوولی په دغسی څېړ نو کی، نه شی هیر ید ای .

د ښځو اتڼ مرحوم نو ری ، څېړ نمل ژو اک او ښا غلی رفیع دوه ډو له (گډ او و رو ) ښو ولی دی، دښځو داتڼ د ناز و په باب په سلی سندری ، پښتنی- سندري اوخلکو سندری کی کښل شوي دي :

«...په و ر و اتڼ کی لو سړی خپلی مخصوصی داتڼ ناری و ایي، او په گډه کی همدغه دنرو او ښځو مشتر کی نارې په بیل بیل و زن سره و ایی» خو مرحوم نو ری په کابل کالنۍ او پر و فیسو رسیال فو لکلو ری سو غات کی چی په دې باب کو می خبرې کړې ،په کلیا تو کی سره یو شی دي ، خو په جز ئیاتو کی تو پیر و نه لري. مر حو م نو ری په کالنۍ کی کښلی دي : «. ..ښځی د نار ینه- و و د اتڼ د نار و څخه پر خلاف داتڼ په لاره کی لنډۍ او یو مخصو ص کسرورسره وایی، اوپه کسر کی اکثره دخپلوتو ریالیونوموړوپښتنویاد اوستاینه کوی»د همدی لیکنی بل ځای بیا کاږ ي: «ښځی ځانته علاوه د نارینه‌و و داتڼ پرنارو و خپلی نو رې مخصوصی ناری هم لری»دښځو د اتڼ اوداتڼ دنارو په باب دنوموړو ښاغلو نظریی یوڅه دقت غو اړي،ښایی ددوی دتحقیق په سیمو کی موضو ع همدارازوي،لکه څنگه چی دوی څېړ لی ده، خودتولو پښتنی سیمودښځینه اتڼونو په باب ددغه حکم منل یوڅه گران

---

( ۷۷) پکتیا مجله د ۹ ۱۳۵ ش کال ۳ گڼه ص ۲۸.

غوندی ا یسی ځکه چې په پښتنی سیمو کی دښځو اتڼ د نارینه و ود ا تڼ په خبر دحر کاتو له مخی بیلابیل ډولونه لري، یوازي دګړنی ادب مؤلف د دغه کتاب په لو مړی او دو هم ټوک کی دښځوداتڼ ( دحرکاتو او محل په اساس ) نه ډ وله ضبط کړي دی(۷۸) که زه نه وم غلطشوی دښځو اتڼ دنارو په باب داوېل غواړم چی: په ځینو پښتنی سیمو کی ښځی دا تڼ په مهال کی دنرو داتڼ نارېنه بولي بلکه د دوی د اتڼ په مختلفو ډ ولو نو کی د اتڼ بدلی هغه خاص سرو کی دي ، چی په لوی سر کی یې د سرو کو په بحث کی خبر لای شو ، دغه سندری د آ هنګ او وزم له مخی د پاسته او سلا یم اتڼ و زن لري، چی معمولاً یې ښځی په خپلو اتڼو نو کی بولي، ددغو سندرو دری لاندې مثالونه وګو رئ .

زانی له او بو راغلی *زانی* که زانی نه وي شنی کو تری له باغو راغلی*زانی

دقره باغ د نجو نو څه ښا یسته جما ل د ی *گل په قر با غ دي جا نانه

لو نګینه * په خنګ خنګ را و او ړه * داسی را و او ړه چی دې شر نګ ـ دبنګړ و شینه* لو نګینه

زه دخپلو څیړنو له مخی داتڼ سندرې په فورمی لحاظ، نه بلکه داتڼ دعمومی ډولونو له مخی په څلورو کتیګو ر یو بیلوم :

(۱) دنارینه و وداتڼ سندرې : هغه سندرې چې نـارینه یې په اتڼ کی بو لي .

دغه سندری په د و و څانګو و یشل کیږي : الف ، داتڼ نارې : دغه نارې ځینی مخصوصی سندرې دي ،چی خاص تو ل اوو زم لري ،دغه نارېدفو رم له مخی دوه پاړ کیږې، درې پاړ کیزې ، او څلو ر پاړ کیزې دي ، او کیدو ن لري چې داسی نارې تر لاسه کړ و ، چی پاړ کی یې تردې زیات وي ،دغه نارې دنرو داتڼ په بیلابیلو ډو لو نو کی له بیلابیل آهنګ سره و یلی کیږي .

---

(۷۸)وګورئ !ګړنی ادب،ج اص۹ ۲ـ ۱ ۳ ؛ج ۲ ،ناچـاپ،دعبدالکریم پتنګ تألیف .

ددغو نارو ۳۰۱ نمونې مرحوم نوري په ملي سندري (۷۹) کې خوندي کړې دي ،چې دغه ناري بيادپښتني سندرې په لومړې کې هم را اخيستل شوې دي (۸۰) پروفيسور رسيال کاکړ لومړې ځل په ترينو نومې رساله کې د ترينانو داتڼ ۲۱ بدلې (۱۸) اوبيايې په فولکلوري سوغات (۸۲) نومې اثر کې ددغو نارو ۳۰۵ بولګې دپښتني اتڼ مينانو ته وړاندې کړې .

---

(۷۹) وګورئ !ملي سندري ، دمرحوم نوري ټولونه، دنارو برخه ص ۱۳۴-۱۴۸ ،د۱۳۲۳ش کال ، دپښتو ټولنې خپرونه.

(۸۰) پښتني سندرې ج۱ ص ۳۳۲-۳۴۷ ، پهدې کتاب کې هماغه دمرحوم نوري را ټولې کړې ۳۰۱ ناري را اخيستل شوې دي .

(۸۱) وګورئ !ترينو !وروستې برخه ص ۳۱-۳۴، د ۱۹۷۳ ع کال دکوټې چاپ .

(۸۲) دغه کتاب په ۱۱۰ مخونوکې په ۱۹۷۸ ع کې کال په کوټه کې خپور شوي دي ، په۴۴مخونو کې يې يادونې، داتڼ او داتڼ دنارو په باب خبرې راغلې دي ، له۴۶مخ نه تر ۱۱۰مخ پورې يې داتڼ ناري پهسردفدول راوړې دي .

زما دمعلوماتو لهمخې داتڼ دنارو په باب پهځانګړې توګه لومړنۍمجموعه همدغه ده، چې داتڼ ډير ډولونه، او داتڼ ډيرې نارې راخوندې کوي، دګران مؤلف زيار او هڅه دپښتني فولکلور ددوستانو پهوړاندې دستايوړده،خوله دې سره ځينې خبرې هم پهدې باب دکولو دي ، چې په مفصل ډول د لې نهشي کيداى ، خولنډ ې لنډ ې به*يې سره وايو:

* په۴۱مخ کې مؤلف دنارو مرکزونه : ږوب ،بوري ،پښين ، کندهار ،

ب، داتڼ‌سرو نه: سرو کی موږپه دوه ولو یو برخو ویشلی وو: عام‌سرو کی او داتڼ سرو کی. د اتڼ دغه سرو کی دوزن او آهنگ له پلوه له عام‌وسرو کو او داتڼ له‌نارو څخه تو پیر و نه‌لري، دغه سرو کی هم‌داتڼ په میدانونو کی و یل کیږي. دپار کو دو یش او دهجایی سیستم له‌پلوه هم مختلف دي ،داتڼ دسرو کو ځینی نمونی دپښتنی سندرې په‌دوهم ټوک خوندي شوې دي. دڅارینه وو داتڼ‌ځینی سرو کی د ښځو داتڼونو په ځینو ډولونوکی‌هم‌ویل کیږی.

---

*پکتیا، زابل ،غزنی، او ښور اوک ښوولسی‌دی، له‌دې سیمو سربیره دروزګان هلمند، فراه، او بادغیس په‌پښتنو کی اتڼو نه دغه ډول بدلی لري، دافغانستان په‌مرکزي برخو، لکه وردګ،سیدان،لوګر او نورو سیمو کی دغه ډول‌بدلی شته. همدارنګه په همدی‌مخ کی زه دصوبه سرحد دپښتنو دا تڼونو په‌باب د ښاغلی مؤلف له‌رایی سره موافق نه‌یم ، هوری ډیر قبایل اتڼونه او دغه‌ډول بدلی لري، خصوصاً له‌صوبۀ سرحد سره‌په ورخیرمه پښتنی قبیلو ،لکه:وزیرو ختکو ،مسودو، دوړو ،بنوځیو، توریو او نورو کی دغه ډول‌نارې شته.

په ۲۲ مخ کی دمؤلف له‌دې خبر وسره چی:«په‌ځینو نکلونو کی‌یو شمېر داسی بیتونه وینو ،چی هغه اصلاً د اتڼ په‌نارو پورې اړه‌لري» زه په‌خپله‌خپل موافقت نه‌ څرګندوم ،ځکه دنکلونو نارې زموږ دشفاهی ادب یو جلاصنف دی چی داتڼ له‌سندرو سره‌یی یو ډول بلل، او یاګډو ل زیان لري. په‌دې خبره‌کی به‌شک نه‌وي ، چی دنکلو نو ځینی نارې به‌داتڼ په‌میدان کی‌و یلی کیږي،داسی خو سرو کی ، لنډۍ اود هوتکو نارې هم په اتڼو نو کی و یلی کیږي ، مګر هغه داتڼ نارې‌نه‌دي ،په‌دی‌باب‌بله‌خبره‌داده،چی‌داو لسی ادب محققین‌دنکلونو نارې په‌خصوصی سندرو کی شمېري، حال‌داچی داتڼ نارې عمومی سندری‌دي (آریانامجله‌ص۶۳،۶۶ کال، ۱۳۴۷،۳ګڼه ). **

۲/دښځو داتڼ ږغو نه: ددغو ډول سندرو عمده برخه دپښتو داولسي ادب پهسرو کو کي ځيني خاص سرو کي دي ، چيددغو سرو کو آهنګ اووزم دښځو داتڼ لهحرکاتو سره برابر دي ،او ښځي يې دخپل اتڼ پهبيلابيلو ډولونو کي وايي، ښايي ځيني تو پير و نه همسو جو دوي يعني داچي پهځينو پښتني سيمو کي به اتڼګريښځي «ناري» هم په اتڼو نو کښي بولي، لکهناړينه چيپه اتڼ کي سرو کي لري، دناړ ينه و و داتڼ سرو کي او دښځو داتڼ سرو کي هم پهخپلو کي د آهنګ دوينګ دسيستم ، اوهمدارنګه دځينو نو ر و موضو عي او شکلي خصو صياتو له پلوه يوځه توپيرو نهلري خوعمو سيات ييي يودي. دښځوداتڼسندرې معمولاً دلنډيو په وسيله بشپړ يږي ددغو سندر و ځيني نمو نې دګړني ادب پهدو اړ و ټو کونو کي ر اغلي دي.

۳/دطالبانو داتڼ سندرې : پهټو لو پښتني سيمو کي طالبان يو ډول مخصوص

---

**په ۱۰۴ مخ کي چيمؤ لف «ناري په کتابو کي » تر سر ليک لاندې کوم بحث کړی کافي نهدی ،ځکه مؤ لف «دملي سندری» نومی کتاب ـچی دنار و لو مړ نی خو ندي کو و نکي اثر دی ـيادو نه نهده کړی ، دغهر نګه د پښتني سندرې ج ا دچاپ کال ۱۳۳۱ ش دی، مګر زمو ږ ليکوال ۱۳۳۳ ښوولیدی ،دغه رنګه دخلکو سندری دچاپ کال ۱۳۴۹ ش دی ، ښاغلي ليکو ال ۱۳۳۹ ش ښوو لی دی . همدار از په ۲۴ مخ کيدغه خبرهچې: «دغه رساله (ملې اتڼو نه) پهخپله غيږ کي داتڼ ناري بيخي نهلري » سمهنه ايسی دغهرساله دا تڼ سندری لري خو نوې نهدي ، بلکه تکرا ری بڼهلري .

سر بيره پردې ددغه کتاب ټو لی نارې نوې نهدي ،بلکه هغه نا رې همپکی پيدا کيږي، چی دملیسندری ، پښتني سندری او خلکو سندرې په پاڼو کيخوندي دي . دغهر نګه ګر ان مؤ لف دملي نکلو نو ځيني نارېهم په دې خوندو ر کتاب کي ر او ړي دي ، چيددغه ډو ل ګټو ن پلوی هم ښايي څو ک نهوي .

اتڼ لري(۸۳)چې زموږ له کلتوري اتڼ څخه متأثر دی ، حرکات او ځینې نور خصوصیات یې له کلتوري اتڼ سره په ځینو سیمو کې یو شی او په ځینو ځایو کې یو څه توپیر لري. طالبان هم دخپلو اتڼو نو دتودو لو له پاره په اتڼ کې سندري و ایي ،په ختیزو سیمو کې طالبان معمولاً دجمعي پهشپو کې اتڼ کوي او په اتڼ کې سندرې بولي، خو ددوی داتڼ سندری هغه نارې اوخاص سرو (۸۴) کې نه دي ، چې زموږ نور پښتانه یې په کلتوري اتڼو نو کې بولي. د دې سیمو دطالبانو پهاتڼ کې معمولاً عام سرو کې،لوبې او سپرې بدلې و یلې کیږي، او ددغه ډول بدلو و یل دنورو پښتنې سیمو کې د طالبانو پهاتڼ کې هم عام دود دی. زمادډغو خبرو ملاتړ د«پښتنې ملی اتڼو نه اومحلی نڅاوی »نوسی اثرپهپاڼو کې هم موندل کیږي (۸۵) مرحوم نوری دکابل کالنی د ۱۳۳۲ کال د ګڼې د۲۰۸ مخ په حاشیه کې کښلی‌دي :«جهر ا کـثره طالبان کوي ، جهر یو مخصوص غوسبر او آواز»(د غه جهرداتڼ دتودولوپه منظور وی)داولس مجلی د۱۹۷۷ع کال په ګڼو(۸۶) کې‌چې کومه مقاله د طالبانو د اتڼ پهنامه خپره شوې ده، د طالبانو داتڼ دسندرو پهنمونو کې‌یې بدلې اوچاربیتی راوړې دي . ۴/دامی کسرونه:داکسرونه‌چی کاکړ ان‌یې‌دامی(داتڼ‌یوه‌نوموړنه)په‌مهال کې

(۸۳)پښتنی ملی اتڼو نه او محلی نڅاوی ،دغلام محی‌الدین ملګـری ص۸-۹ د ۱۳۵۲ش کال چاپ ، فولکلوری سوغات ص۳۰ .

(۸۴) دقندمجله،سر دان،د۱۹۷۲ع کـال ۷ - ۸ګڼه۴ ۱-۱۸ مخونه، دطالبانو- اتڼ دسیدمیر بادشاه بخاری لیکنه .

(۸۵)پښتنی ملی‌اتڼونه او محلی نڅاوی ص۸-۹ .

(۸۶) اولس‌مجله‌د ۱۹۷۷ع کـال ۴ ګڼه ،۲ ۱-۱۶ مخونه، د طالبانو اتڼ دعبدالکافی ادیب مقاله، ددغی مقالی سته دقنددمجلی‌پر یاده شوې مقاله‌بناده.

دلنډیو په ملتیابولي، هم داتڼ مخصوصی سندرې دي،چی ځینی نمونې یې پروفیسور سیال کاکړ دفولکلوری سوغات په ۱۹-۲۰ مخونو کې خوندي کړې دي .

* * *

دلی باید داخبره یاده شی داتڼ نارېچی په پښتیاکی یې داتڼ بیتونه هم بولي، زموږ دفولکلور ځانته ډول دی، چی له مختلفو پښتني سیمو څخه باید په خورا امانتداری راټول او خوندی شي، زموږ فولکلور څېړونکی باید نارې لەسروکو او سروکی لەنا و سره ګډنه کړي، ځکه دغه ګډون به زموږ د بډای اولسی ادب ګڼو فورمی مشخصاتو ته زیان واړوي ، لەبده مرغه دسروکو او نارو په ځینو مجموعوکی دغه ډول ورانی پیښنی دي .

دمثال په ډول دپښتني سندری د دوهم ټوک د ضمیمی پەاوله برخه کی چی کومی سندرې د « اتڼ سرونه »په نامه راغلی دي ټوله شمېره یې ۷۲ ده. پەدی سندروکی زما دڅېړنی لەمخی ۹ داتڼ مخصوصی نارې، ۱۱ داتڼ خاص سروکی او نوریی عام سروکی دي چی ځینی یې دسندرغاړو له خوادعامو سندرو په ډول ثبت شوي اوثبتونه یی درادیو دموسیقی پەارشیف کی شته.داتڼ یوسربې (دټولوونکو پەزعم) داولسی شاعر محمدنور دیوې اولسی بدلی سردی، چی بشپړه بدله دهمدغه کتاب پە۱۳۴ مخ کیرا غلی دهاوځلور بنده لري خو دهمدغه کتاب داتڼ دسرونو پەبرخه (ص۲۳۶) کی یی دبدلی لەسر څخه پەتحریفی شکل داسیداتڼ سرجوړ کړی دی :

دا توری زلفی پەمخ زانګیولونه ولونه * سترګی کەتوری پەسرواچوەشالونه

د غرنیسندری دکتاب«داتڼ بیتونه»داتڼ هغهخوند ورې نارېدیچی دپښتیا زلمیان یېدمنه هیر اوشیرینیه دغرونوپەدروکی داتڼ دمیدانونود ځوښراوګرمی لەپارەبولی دپښتیادسیمیداتڼ بیتونه تراوسەپەکتابی شکل نەدی خوندی شوی اوچاپشوی

(۸۷) یوازې دپکتیا د مجلې دسږکال په یوه گڼه (۸۸) ددې سیمې داتڼ ۱۸ نارې خوندې شوې دي چې په خپل تول اووزم کې دغرنۍ سندرې داتڼ له بیتونو سره یوشی دي خوځه چې پرې د ویلودې دادي چې ځینې نارې یې نیمگړې راوړې دي لکه دا ناره !

زما یارمطالبه *طالبه یاره خوله غواړي که ژبه

ددغې نارې بشپړشکل دفولکلوري سوغات په ۱۸ مخ کې داسې ضبط دی:

زما یارمطالبه *طالبه یاره خوله غواړي که ژبه

خوله به ترتاجارکم *ژبه ترتالولاندې غایبه

دغه رنگه دهمدې مقالې له ۱۸ نارو روسته ۶ سروکې هم راوړل شوي اود مقالې لیکوال ترې دمخه داهم کښلي دي «دالاندې بیتونه په اتڼ کې نه ویل کیږي بلکه «وروڅی» یې دلارې پی اوږدو کې چې ناوې د هلک له کورنه راوړي یاد اچې دجلکې کورته ورځي وایي » نه به دادعوای چې دغه سروکې یې د اتڼ له بیتونو (نارو) سره یوځای نه وای راوړي . دغه ډول ښاغلی خپرنمل علی محمد منگل دکابل مجلې د ۹ ۱۳۵ کال د ۶ گڼې په (۶۲-۶۴) مخونو کې د پښتیا دمنگلو دسیمو دا تڼ خوندورې نارې خوندی کړې دي، خو یوځه گډوډې لري له ځینونارو سره یې داتڼ چیانو دغورځیو خاص آوازونه هم ضبط کړي دي. (۶۲مخ)

دادې دغرنۍ سندرې داتڼ دبیتونو په چاپ سره به زموږ دگرانې پښتونخوا دیوې تاریخي او سترې سیمې داتڼ هغه اصلي او سوچه سندرې دپښتنې فولکلور

---

(۸۷) ښاغلي عبدالکریم بتنگ دغرونوځوکې په ۳۰-۳۴ مخونو کې داتڼ او اتڼ سندرې ترسرلیک لاندې ځینې مطالب لیکلي، خو دسندرو دضبط له کوم پلوه کوم خاص ارزښت نه لري او دخوست دسیمو ځومحدودې نارې یې راوړې دي دا یادونه بیاددې له پاره وشوه ، چې سادگران غروال دغه را تول کړې بیتونه لوسږ نی بیتونه بللي چې په کتابي شکل خوندي شوي. که نه وي د پتنگ کتاب خوتر دغه کتابه دمخه چاپ شوی دی.

(۸۸) پکتیامجله د ۹ ۱۳۵ کال ۳ گڼه ص۳۷

دخیږ و نکو په‌و اك کی‌شی. دغو و ال را تهو لی کړی داتې سندری دهغو سندرو خو ند رنګ لری ، چی نو ر پښتانه‌یی دتاریخی کندهار، بوری ، کلات ، پښین په‌پراخو سیمو او دارغنداو په‌شنو باغونو دو زیرستان په‌ښکلو درو ،دکو۔ هاتې او چراتې په‌غرو ،دکوږ ګ اوسره غره په‌لمنو، دمقر، غزنی ، هلمند و ردګو ،میدان په‌درو او بانډو کی داتې میدانونه پرې تاوده ساتی ، دغه لاندی دوې ناری دغرو ال له‌راټول کړو نارو څخه ولولیء !

ښکلیه کندهاره* څلو ردې درو ازی ،څلو ردې ښاره
ستاسترګی ډنډونه* بانه دې شلوزان شینکی باغونه

« ۴ »

## ښځینه اولسی ادبیات

ګران لیکوال محمدعارف غرو ال دغرنی سندری په‌وروستی برخه‌کی د «ښځینه اولسی ادبیات» ترعنوان لاندې ځینی سندری راوړی دی ،او په‌همدی سندرو یې کتاب پای ته‌رسولی دی .

هسی خو پـه خپله دغه‌عنوان دمطـالعی پـراخ میدان لری ځکـه پښتنه میرمن پـه جامعه کی لـه نرسره د نـوروا وجتماعـی اوملی چارو د اجراء ترخنګه دپښتو په نامدون ادب ( اولسی ادب) کی په خاصه توګه دقدرو ړ برخه لری . دنړی د زیاترو ژبو ادبیات عموماً خو دپښتنو هغو خصوصاً د ښځو مرهون دي. داهم باید و وایوچې پښتنه میرمن نه یوازی داچې د پښتو دشفاهی ادب دزیاتی برخی تخلیقو ونکی ده، بلکه په مدون‌ادب کی‌یی‌هم‌له ډیره قدیمه ونډه له‌پامه نه‌شوغورځولای (۸۹) .

---

(۸۹) وګوریء! په‌پښتو ادب کی دمیرمنی برخه، دلوی‌استاد پوهاندعبدالحی حبیبی مقاله، دزیری کالنی ۱—۲۳ مخونه ،روهی ادب ج ۲ص ۲۶۵ — ۲۷۳.

ژ مو ږ په او لسی ادب کې، دښادی هر ډو ل بدلی، لنډی، ناری، غاړی، ساندی، سرو کی دمیندو سندری ، پړا کی، چغیان(۹۰) سو لی، سلسلی اوبر غازی (۹۱) ز یاتره او په ځینو کې یوځه برخه دښځو دفکرمحصول دی، او دډیرودغه ډول سندرو په لوی سمندر کی دښځو نرم او لطیف احساس، بی ز او له مینه، نا پایه رنځو نه او کړ او و نه پهځپو دی، او ز مو ږ د ملت دملی تاریخ حماسو ته په سربوطو او لسی تخلیقاتو کی د پښتنی میر منی ملی غر و ر ، شهامت او سر ښندنه پهډیر و یاړ په غو رځنګ ده. نو ځکه ترد غسی یو و سیع عنو ان لاندی باید پهټو لو دغهډو ل او لسی سندر و خبری و شی، او نمو نی یې ر او ړ ل شی، خو لکهچې څر ګندهده ، ز مو ږ دلیکو ال مقصد دلی د ښا دی هغه بدلی دي ، چی پښتنی میر منی یې دزوی د پیدا کیدو کو ژ دی، و اده او خپښیو په مر اسمو کی و ایی .

ددغو سندر و ټو لو ل هم پهزړه پو ری او مهم کار دی ،

ځکه په دې بر خه کې مو ږ هر څو مره کارو کړ و ، او د پښتنو له بیلو بیلو سیمو او مختلفو قبیلو څخه دا ډو ل سندری ر اټو لی کړ و ، بیا یې هم باید کافی و نه بو لو ، ځکه د غهډو ل سندری لهقدیمه ز مو ږ لهځینو کلتوری مر اسمو سر ه جو ختی او نښتی ر اغلی دی ، او پښتنو میر منو ددغسی کلتو ری مر اسمو په جر یان ا و داجر اء

---

(۹۰) چغیان یو ډو ل او لسی سندری دی، چی ناو یانی یې دود یدو پهمهال کی له ژړا سر ه و ایی، ددغو سندر و نمو نی پر و فیسو رسیال کا کړ ر ا ټو لی کړی او په ۱۹۷۰ ع کال یی دیوی مجمو عي په تو ګه په ۴۸ مخو نو کی پهکو ټه کی چا پ کړی دی .

(۹۱) دغه دری ډو له سندری هم نو سو ړی پروفیسو ر ر اټو لی کړې، اوپښتو ټولنی دیوی مجمو عی په تو ګه په ۱۳۵۶ کا ل چاپ ، او په ۱۳۵۷ کا ل خپری کړی دی .

په‌مهال کی‌فی‌البدیهه جوړی کړی دی .

دخپښیو ، و دو نو ،او کوژ دو دیبلاییلو لحظو ،دزوی د زو کړی ، دهلك دستنو لو ،دپنځلسی‌دشپی ،داخترو نو او سیلو او دخو ښۍ دنو رو سر اسمو بدلی که له‌یوی‌خوا دپښتنی میر منی دقریحی علویت او ابتکار راښکاره کوی،له‌بلی خوا زمو ږ دخینو کلتو ری پدیدو ډیر کو چنی جز ئیات هم راخر گندوی،او زمو ږ دکلتو ر دډیرو باریکیو په‌جو تو لو او ځلا کی‌یی پدل دیادو نی‌وړ دی .

که‌څه هم له‌پخوا څخه ددغو سندرو دټو لو لو له‌پاره کار شوی دی ، خو نو ر کار ته هم‌سو ږ په‌دی خصوص کی ضرو رت لرو . اوس په پر هغو کار ونو لړ رڼا واچوو ، چی ددغو بدلو دټو لو لو په لړ کی ترسره شوی دی :

۱— ټو لی هغه بدلی چی‌سر حو م غلام جیلانی جلالی د«پښتو ځانتنی ادبا و سو سیقی» په‌مقاله کی دخر ښمانو بدلی، دپلیو و رابانو بدلی، دسپرو و رابانو بدلی ، دناوی درا ایستو بدلی، او د ناوی دسپر یدو بدلی تر کو چنیو عنا وینو لاندی راوړی.او شرح کړی، ټو لې دښادی بدلی دی (۹۲) .

۲— هغه ۱۱۲ بدلې چی‌سر حو م نو ری په‌ملی‌سندری(۹۳) کی دبابو لالی په نامه راوړی ، او بیاد پښتنی سند ری د لو سړی ټو ك (۹۴) ټو لو و نکو له هغه کتابه‌را اخیستی او په همدې نامه یې خو ندی کړی ، ټو لې دښادی په بدلو کی شمارل کیږی .

۳ — هغه‌بدلی چې‌په «پښتنی دو دو نه» نو سی کتاب کی‌ښاغلی و اسعی د قندهار دو دو نه په مقاله (ص۱ ۵،۵۶) ښاغلی اتمان دپکتیادو دو نه په مقاله

---

(۹۲) وګو ریء! دطلو ع افغان کال ګڼه، ۱۳۱۷ ش کال ، ۱۱، ۱۸مخو نه .

۹۳—وګو ریء! ملی سندری ص. ۱۵— ۱۶۵ .

۹۴— پښتنی سندری ج ۱ ص ۳۴۸— ۳۶۴

(ص۱۷۳، ۱۷۵، ۱۸۳، ۱۸۷۵، ۱۸۶ ) (د۱۳۳۶ش کال دپښتو ټولنی چاپ) کی راوړی ټولې دښادی بدلی دی.

۴— هغه بدلی چې ښاغلی محمدابراهیم عطایی د«هلمند دکلتور په ساحه کی» نومی اثر (ص۹۴—۱۳۴۱ش کال دلښکرگاه چاپ ) او هلمند نومی کتاب (ص۶۶—۶۷—د۱۳۴۴ کال چاپ— کابل ) کی ضبط کړی دی ، ټولی دښادی په بدلو کی حسابیږی .

۵— دهغو سندرو نمونی چې ښاغلی عبدالقدوس نجیب دکندهار مجلی د ۱۳۴۹ش کال په ۹ گڼه ، ۲۲ مخ کی د«بابو لاله » ترسرلیک لاندی ، او بیا هم د کندهار دسیمو هغه سندری چې ښاغلی محمدولی ځلمی په «کندهار» نومی اثر ص ۲۰۱، ۲۰۳ د۱۳۵۰ ش کال چاپ کی راوړی دی، ټولی دښادی په بدلو کی شمارل کیږی.

۶— عبدالقدوس پوپل د۱۹۶۸ع کال داولس مجلی دکال گڼی په ۴۰ مخ کی دکوټی دسیمو په پښتنو کی د موجودو دغه ډول بدلو نمونی راوړی دي، چې دښادی دبدلو دخیرنی په سهال کی یې نه شو هیرولای .

۷— هغه بدلی چې ښاغلی رفیع « دوردگو دودونه» (۹۵) نومی اثر او په «دخلکو سندری» کی دبابو لالی ترسرلیک لاندې خوندي کړې دي ټولی دښادی په بدلو کی راځي، دغه بابو لالی نوموړی رفیع د آریانا مجلی د۲۶ کال په ۵ گڼه ص ۷ ۵ - ۵۹ او ۶ گڼه ص۴۴—۵۵ کی هم خوندی کړی دي .

۸— هغه بدلی چې پروفیسور محمدنواز خان طایر « دټپې معاشرتی تجزیه» نومی رساله کی د « خوابنی نوور» ترسرلیك لاندی راوړی دی،دښادی بدلی

---

(۹۵) هیواد ورځپانه ،د۹۳۴۹ کال حمل کال ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۱۳، ۱۴، ۱۵، گڼی

(۹۶) د خلکو سندری ص ۷۶—۹۷.

دي (۹۷) نوموړی پروفیسور په روهی ادب ج ۱ص ۲۶۸—۲۶۹ کښی هم دښادی دبدلو څو نمونی راوړی دی .

۹— هغه بدلی چې پروفیسور رسیال کاکړ په پښتنی فولکلور نومی اثر کی کی «دګوندی سندری» ترعنوان لاندی راوړی دښادی بدلی دي(۹۸) همدا رنګه نوموړی ښاغلی سیال کاکړ په‌ترینو، نومی رساله ص ۳۵ — ۳۶ کښی «داللهموری» ترسرلیك لاندی دترینانو دښادی ځینی بدلی هم‌ضبط کړی‌دی .

۱۰— ښاغلی علی‌محمدسنګل په فولکلوری ګټهٔ کی « دواده په‌دود کی د دښځوسندری» (۹۹) ترسرلیك لاندی او په اولسی پوهه کی‌د „دو اده‌دود » (۱۰۰) داود و بحث په بیلا بیلو برخو کی د غه ډول سندری خوندی کړی دي. نوموړی سنګل دزیری جریدی د۱۹۵۹ کال په ۴۰،۴۱—۴۲، ۴۴ ۴۵،ګڼو کی دواده په وخت دځښو پاسونه ترسرلیك لاندی ۶ مقالی خپری کړې دی ، چی په دغو مقالو کی دښادی د بدلو ډیری نمونی هم راوړل شوی دي . داچی د غه سندری څو مره نوی او څومره دده له نورو لیکنوسره تکرار لري ، ځانته بیله خبره او بیل بحث دی، خو یوه بله موضوع چی د لته

---

(۹۷) دټبری معاشرتی تجزیه، پښتو مجله (دپښتو راکیډیمی) د ۱۹۶۴ع کال فوق العاده ګڼه ۱۱۲—۱۱۳ مخونه .

(۹۸) پښتنی فولکلور ص ۷۲—۷۳، د۱۹۷۱ع کال دکوټی چاپ .

(۹۹) فولکلوری ګټهٔ ۱۸۴—۲۰۰، ددغه کتاب په‌سندرو کی داتڼ ناری هم ګډې دی (ص۱۹۹ )

(۱۰۰) اولسی پوهه‌ص۱۲—۶۲، داولسی پوهی‌او فولکلوری ګټهٔ ی ځینی سندری سره تکرار دی، لکه دګټهٔ‌د ۱۸۵ مخ دوی سندری دپوهی په ۳۲ مخ مخ کی راغلی دي ، او نور ....

پری گړ یږم داده ، چی نو موړی گران و رو ر دښادی بدلو ته د خیښو پامو نه وایي . پا مو نه ده په خپلو آ ثـار و او مقالو کښی د سر و کو پـه مـعنی را پيژ ند لی دي(کابل مجله، د۱۳۰۹ کال ۹ گڼه ۸۵ مخ ، ۱۰ گڼه ۳۰ مخ) او دخیښو سندړی یابدلی خو دښادی بدلی ، او زمو ږ دفو لکلو ر جلاصنف دی .

۱۱ــ مرحوم غلام محمد تره کی (۱۳۰۷ش مړ) دپښتنو دو دونه نـو مې اثر د کو ژ دی او وا ده ددو دو نو (۱۰۱) د څیړ لو په ترخ کی او محمد اسلم قربانخیل په فو لکلو ر (۱۰۲) نو مې رساله کی چی د اند ړو په دو دو نو خبری کړی ، د و اده د دو د دتشر یح پـه لـړ کی يي دد غو سندرو ډیری نمو نی هم خو ند ی کړی دي .

۱۲ــ ځو ان فو لکلو رتو لو و نکی عبدالکر یم پتنګ په‌خپل یوه نوی اثر دغر و نو څو کی (۱۰۳) په (۱۳ــ۲۰ مخونه) (د۱۳۰۹ کال چاپ ـ دفلالوژی پو هنځي خپر و نه) کی ددغو سندر و ځینی نمو نی‌چی ـ يي دخو ست له مر کز ،سیمو را تولی کړی ـ خوندی کړی دی .

---

(۱۰۱) د پښتنو دو دو نه ، ص۱۰۲ــ۱۲۸ د۱۳۰۳ش کال چاپ د ادب او فو لکلو رتو لنه .

(۱۰۲) نو موړی محمداسلم دغه رسالـه دلیسانس ددو رى د مانو گر اف لـه پاره لیکلی وه ، چې په هغی کی يي دغز نی داندړو ځینـی د و دو نـه را وړی دي، بیا یې د همدغی رسالی ځینی مقالی د ز یری جر یدی د۱۳۰۵ کال په گڼو کی په تفار یقو خپری کړی،و ر وسته يي بیا دغه ټو ل اثر دفو لکلو ر په نامه د ز یری په کالنی کې خپو ر کړی(۸۰ مخه)چې دښادی سندری يي په ۳۸ــ۳۹ مخو نو کی راغلی دي .

۱۳— دفولکلور مجلې په تفاریقو دغو سندرو نمونې او ددغو سندرو په باب نور تشریحات په خپلو پاڼو کې چاپ کړي دي (۱۰۴) .

۱۴— دبنادی دبدلو یوه مغتنمه مجموعه پروفیسور ولي محمدسیال کاکړ په کوټه کې خپره کړې ده(۱۰۵) دغه مجموعه ۲۰۰ بدلې لري، نوم یې «فولکلوري جواهر» دی، دغه مجموعه ډیرې ښیګڼې او نوې خبرې لري ، خو د دې تر څنګه ځینې دیادونې وړ تکي هم پکې پیدا کیږي، چې د لسې پرې بحث موضوع او ږدوی .

---

(۱۰۳) ددغه اثر یادونه دسرو کې نومې رسالې په مقدمه کې د «غر و نوښانګې» په نامه شوې ده. لوی استاد پوهاند عبدالحی حبیبي ددغه نوم پر ځای «دغرو نوخوکې» نوم غوره کړی، او الحق چې ښه نوم دی .

(۱۰۴)دزرملي دسیمې دو اده ملې سندرې دمحمدمعصوم مقالــه ، پــه ځــدرانو کــې د واده ځینې دودونه او سندرې ، دځوان لیکوال اسد الله شعورمقاله ،او دغــه راز د همد غــې مجلې د ۱۳۵۴ — ۱۳۵۵ کلونو په ځینو ګڼو کې داحسان آرینزي مقالې د خاصې یادونې وړ دي .

نوموړي آرینزي دزیري جریدې د ۱۳۵۶ کال په ۶۴ګڼه کې د«بابو لالې یاد ښځو ځانګړې سندرې» ترعنوان لاندې هم یوه مقاله کښلې او زیرې خپره کړې ده .

دغه لیکوال زموږ دوردګو پښتنو له کلیو او بانډو څخه ددغو سندرو ۲۰۰۰ نمونې راټولې کړي او دیوې جلامجموعې په توګه یې ترتیب کړې دي .دیادونې وړ ده، چې ده هم دغه سندرې دبابو لالې په نامه معرفي کړې دي*

۱۵ — ښاغلي بسم‌الله حقمل په خپل ناچاپ اثر « د تنيو ډ کلتو ر او فو لکلو ر څېړ نه» کې د ښادي دسندر و ځيني نمو نې خو ندی کړی ، او هغه مقالې چې يې د ۱۳۵۹ کال د کابل مجلې په ځينو گڼو کې خپر ې شوې ، هم د دغه ډو ل سندر وځينې نمو نې لري (۱۰۶) .

۱۶ — په غزنی سندری کې دگر ان غر وال دغه ر اتو لی کړي بدلی ز مو ږ د دغه ډو ل بدلو يوه و ر که کړی ده، چې دنو ر و کړ يو په بشپړ يدو سر ه به يې ز مو ږ د دغو سندر و لړی ښه پسی بشپړ ه شي. غر و ال چې کو مې سندری په دې بر خه کې ر او ړی ځيني يې د ښادی بدلی دی، خو د دغسی به لو تر څنگه يې ځينې عام سر و کې هم په دې سندر و کې خو ندی کړی دي .

ز ما په عقيده ښه به دا و ای چې محتر م مؤ لف دغه سر وه کې د کتاب د سر و کو بر خې ته انتقال کړی و ای، او د ښادی بو بې بدلی يې د کتا ب پر دغه ځای پر ينښې و ای — د دې يا دو نې تر څنگه دابا يدو و ايم چې د کتاب د د ې برخې

*حال دا چې دغه سندری بابو لالی نه، بلکه په مجموع کې د ښادی بدلی دی، چې بابولالی يکی د جز حيثيت لری نه د کل، پرو فيسور سيال کاکړ دغه مو ضوع ښه څېړ لی ده، او گر ان لو ستو نکی يې د فو لکلو ری جو لهر په مقدمه کې مطالعه کو لای شي.
(۱۰۵) وگورئ! فولکلوری جواهر (۱۹۷۹ع کال د کوټې چاپ پښتو اکاديمی) د دغه کتاب په ۶۰-۶۳ مخونو کې چې د ښادی د بدلو د ټولونګ په هڅو کو مې خبری شوېدی نيمگړی ايسی اوگران ليکوا ل دغه آ ثا ر چې ما لو ر يا د کړل ټول نه دی ښو ولی .

( ۱۰۶ ) وگورئ! کابل مجله ۱۳۵۹ ش کا ل ۹ گڼه ۶ — ۷۳ مخو نه ، د کلتوری ارزښتونو له مخې په خوست کې دواده د مراسمو تحليل .

سرو کی هم سوچه ،نوی او دگرانی پښتیا دغریزو سیمو هغه خوږی غرنی ازانگی لری، او خوندی کول یې په هرځای کی چی وی ښه کار دی.زمانیامت په دی یادونه کی داؤ چی گران لوستونکی دسندرو دگډو ن معضلی ته متوجه شی، او په گانده کی زموږ د رانه او محترم فولکلور څیړونکی هرډ و ل سندری په خپل خپل ځای کی راوړی. دسندرو او نورو فولکلوری اصنافو د بیلولو په برخه کی ستونزه پرځان و منی ، او ددغه ډول گډون مخنیوی و کړی .

زه ددې نیمگړی لیکنی په پای کی وایم چی دغروال ددی کتاب ټولی سندری او راټول کړی مواد د پښتنی بډای فرهنگ په څیړنه او څرگندونه کی اغیزمن پدل لری ، او زه خپل دغه گران ملگری ته ددغه ډول نورو چارو د تر سره کولو بری غوارم او ددې سود مند اوگټور کتاب د چاپ مبارکی ورکوم عمر دې یی ډیر وی ، او قلم دې یی د پښتنی کلتور او فولکلور د خوندی کولو په لیاره کی تل چلیږی .

یادونه : په دغه څیړنه کی چی: دپراکو ، سرو کو، داتڼ نارو او ښکلنه اولسی ادبیاتو په باب کومه څیړنه شوی ده، زما دشخصی څیړنو اومطالعی نتیجه ده ښائی زما مطالعه ناقصه او نارسا وی ،دپښتنی کلتو رمینان به ماویخښی او زما تیروتنی به عفو کړي. ددغی څیړنی ټولی خبری دیوه نظر ارزښت لری او حتمی نه ده چی ودې منل شی .

# څو خبرې

د۱۳۵۴ کال په وروستیو شپو و رځو کې د پښتو ټولنې د ریاست له خوا وظیفه راکړه شوه چې د رسمي وظیفو په څنګ کې د پکتیا هغه (غرني سندرې) په یوه مجموعه کې راټولې کړم چې تراوسه پورې کار پرې نه دی شوی او دیوه ادبي اثر په توګه یې د خپر نملی علمي رتبې ته کاندید کړم .

که څه هم زه پخوا هم دې ټکي ته متوجه وم او هیله مې لرله چې که وکولای شم د پښتو د اولسي ادب د غه له نظره لویدلې برخې ته یو څه خدمت وکړم او د پښتو د غه شفاهي ادب له امحاء څخه و ژغورم، نو له یوې خوا خپل شخصي ذوق او له بلې خوا وظیفوي مکلفیت دې ته وهڅولم چې کله نا کله په مناسب وخت کې د پکتیاد نګو غرونو په د نګو څوکو،تنګو دراو او ود انو

و رشو گانو و کرځم ، تر څو داسې رنګارنګ او ښایسته ګلان را ټول کړم چې تر او سه دچاو رته پام قدري هم نه وي شوی او په پای کې یې د ګلو دیوی ښکلي ګیډۍ په شان د پښتو ادب مینانو ته وړاندې کړم .

څوك چې غواړي کوم ادبي او هنري اثر و لیکي مجبور دی له ځینو داسې معتبرو ماخذ و نو څخه استفاده وکړي چې داثر په باوري کیدلو کې اغیزه ولري. خو ماددغه اثر په لیکلو کې له داسې مأخذو نو څخه استفاده کړې که څه هم د کتاب په بڼه نه دي نو ندل کیږي خو اعتبار یې له ډیر معتبر مأخذ څخه هم زیات دی. له ماسره ددغه اثر په بشپړولو کې د پکتیاز یاترو سپین ږیرو او سپین سرو ښځو یاد و قه سندرغاړ و ا و نورو خوانانو په زړه پورې مرسته کړې ده چې دلته په دټولو د غو محترمو نومونه ړاوړل دومره ورنه وي خو دومره باید و و یل شي چې ددوی له دغې ادبي مرستې څخه د کورودانی د ویلو په څنګ کې ددوی دزیاتې خوشالی هیله کوم .

کله چې د پام وړ مواد و یو څه زیاته برخه چې همدا اوس د محترمو لوستو نکو مخې ته پرته ده راټوله شوه نو مې دیوې رسالې په بڼه د ۱۳۵۶ کال د سرطان په میاشت کې چې زماد علمي ترفیع وخت و ، د هغه وخت ریاست محترم مقام ته وړاندې کړه. هغوی د پښتو ټولنې د علمي صلاحیت لرونکو دریو غړیو : ډاکتر پولاد ډاکتر لودین او خیر نوال دوست ته د وروستیو نظریو له پاره وسپارل

دغو دریو واړو محترمو سلګرو مثبتې نظریې پرې و لیکلې او زمادغه نیمګړی کار یې دعلمې ترفیع وړ وباله او په خپلو عالمانه نظریو کې یې دهغه دچا ـ پولو سپارښتنه هم وکړه ، ساخو په خپل دغه اثر علمې ترفیع وکړه مګر د چاپ کار یې تر اوسه پورې و ځنډید، خو اوس چې مې دهغه دچاپ په باب کومه عرض پاڼه داکاډیمی د ریاست محترم مقام ته وړاندې کړه هغوی بیا هم

ددغې اکاډیمۍ دریځ‌ته دعلمې صلا جیت لرونکې غړی محترم ښاغلي ندوی ـ محمدصدیق روهی ، ښاغلي نوال عبدالرحیم ځدراڼ او ښاغلي نیار زلمی هیوادمل و تا کل چې دچاپ په باب یې خپل نظر و لیکي، زه ددوی له دغو علمې نظریو څخه دزړه له کومې‌مننه کوم چې زمادغه نیمګړی کار یې ددې وړ و باله چې دچاپ ډګر ته‌راووځي او خپل قیمتي وخت یې ددغه اثر په کتلو ضایع کړی دی .

دپښتو اولسی ادب ته‌خو دزمانې په‌اوږدو کې ډیرو خواخوږو او د قلم خاوندانو زیات کار کړی‌دی او خپله سپیڅلې وظیفه‌یې له خپل‌توان سره سمه ترسره کړې‌ده،خو ساداولسی ادب هغې برخې ته‌خپل پام را اړولی دی چې که‌څونورکلونه پرې تیرشي نوددغو موادو نیمایي به‌هم بیاپه‌لاس‌رانه شي، ځکه دپښتو داولسی ادب دغه‌په‌زړه پورې برخه خوله په‌خوله له‌یوې ږمانې نه‌بلې زمانې‌ته‌لیږدې نودخپل دغه لیږد په دوران کې هرومرو

داسي هم پيښيږي چي څه ناڅه تري کنډاو کيږ شي ، په ځينو برخو کي يي بدلونه راشي او ځيني يي هم تري تم شي او په دي باور لرم چي که چيري دغه کار ماڅو کاله پخوا کړی وای نو يقيناً به يي کيفيت او کميت له او سني حالت څخه څو واره ښه او بشپړ وای. زما وظيفه په دي ځای کي پای ته نه رسيږي بلکي لا پسي درنديږي هم، داځکه زه هيله لرم چي د همدې لړۍ په د وام د پښتو داولسي ادب ځيني نور له نظره لويدلي اړخونه هم را برسيره کړم او دخپل دغه کار په ترسره کولو کي له لوی خدای (ج) څخه مرسته غواړم.

محترم لوستونکي به ماو بخښي چي که چيري په دااثر کي کومه نيمګړ تيا و ويني او ياداچي د يوه بيخي بشپړ اثر په توګه يي نه بولي دا ځکه چي دداسي پوځ ادو مو ندل دومره اسان کار هم نه دی و خت او نقليه وسايل او نور داسي ضروري شيان غواړي چي ديو څيړونکي په مخ کي خنډونه له منځه يوسي.

څيړ نمل محمد عارف غروال

* دپښتو د اولسي ادب دغه لهنظره لویدلی ډول دپښتو د اولسي ادبد خیړو نکو له نظره تردی دمه پوری نه و تیرشوی او څه پری نهدی لیکل شوی .

دپښتو داولسي ادب دغه لهنظره لویدلی برخه دپکتیاپه ولایت کیاوس هم ژوندی ده دایو ډیرلنډکی او خوږشعردی چی تر اوسه پوری یی د پښتو پهاولسي ادب کیاندول نهدی پیداشوی‌او دپښتو په اولسي ادب کی لهدغه شعر نه لنډکی شعر نه لرو ، داځکه دکاکړو دغاړو ددواړو مسریو سیلابونه معمولاً شپاړلس او دلنډی دواړه مسری دوه و پشت سیلا بونه دی خو دا شعر یوازی یوه څوارلس سیلابیزه مسری ده نوځکه د لنډکی نوم غوره ورته وبلل شو .

لنډکی کهله‌یوی خوا له لنډۍ سره نژدې والی لری نو له‌بلی خوا له سرو-
کی سره هم ورته‌ده،له لنډۍ سره خو په‌دی نژدی ده چی دلنډۍ له دو یمی
مسری نه یی یوازی یو سیلاب زیات دی نو رنو په وزن او اهنګ کی ور
سره یوشان دی اوله‌سرو کی سره ځکه ورته‌والی لری‌چی داهم لکه‌سروکی
غوندی معمولاً له لنډۍ نه وروسته ویله کیږی خو له لنډۍ سره یی
لوی توپیر دادی چی دلنډۍ دو یمه مسری دمعناله مخی غالباً نیمګړی وی‌تر
څوچی لو مړی مسری ورسره یوځای نه شی مطلب یی ګونګ وی او هم د
لنډۍ دو یمه مسری هیڅکله څوارلس سیلابه نه‌وی او له سروکی سره یی
توپیر دادی چی یوسروکی معمولاً مطلب لری او له‌هری لنډۍ نه ورو-
سته بدلیږی او له‌مناسبی لنډۍ سره مناسبه لنډکی‌ویله کیږي .

**دلنډکي نوم اوجوړښت:**

لکه مخکی چی‌وویل شول لنډکی معمولاً څوارلس سیلابه وی .

همدارازلکه دلنډۍ غوندی (لنډکی) هم په(ونه،ینه‌اومه) سرته‌رسیږی
چی‌ځانګړی وزن او آهنګ لری،لکه په لاندی مثالونوکی چی لیدل کیږی :

ونه: جار په‌خوست‌ګرمی ده ماته کیږ ده ځنارونه .

ینه: جاردیدن ږلی ده مازیګر یی ورو ینه .

مه: توری سترګی سره لاسونه تاته ناسته یمه

څه‌وخت چی‌لنډۍ دغرنیوسندرو په طرز ویله کیږی‌نو لنډکی یی‌غبر-
ګون کوی او دو ولنډیوتر منځ دوقفی له‌پاره راځی .

دلنډکی داولسی نامه په‌باب چی ماهرخوسره څیړنه او هڅه وکړه چی
نوم‌یی دپکتیا له‌اولسی خلکو ترلاسه کړم خو معلومه شوه‌چی کوم خاص

تو م نه‌لري ځکه ځيني خلك يي پر اکي بو لي څوك لنډ کی و رتـه و ايي څوك يي ټکی بو لي او څوك يي د سو ری په نامه يادوی خو څر نگه چی تـــــــر لنډۍ لنډيږدی او د پښتو په او لسي ادب کي ترې لنډې سندرې نشته نو ځکه مادلنډ کي‌نوم و رته و رو باله. همدا راز «لنډ کي» په‌ملي‌اتڼ کي‌هم‌ضرو ری او په يوه خاص و زن او پر ته‌دلنډيو د ګډو ن ځخه په‌ځانګړي ډو ل و يل کيږي او خپله خپلو اکي ښيي ، يعني څه‌و خت چي داتڼ ميدان خوړ اتو دشي نو ديو خو اړه غړ لړو نکي ځوان له خو او ر په‌و اړ يوه لنډ کي‌و يله کيږي اودنو ر و اتڼ چيانو له‌خواد هرې‌لنډ کي‌له‌ختميدوسره داتڼ‌ميدان ورو ورو‌تودېږی.

دلنډ کيو موضو ع :

لنډ کی هم‌لکه دلنډۍ‌غو ندې را ز راز حماسي، عشقي، اصلاحي او اجتماعي ا ړخو نه لري او دژ و ند ټولي خو اوې پکي ر انغښتل کيداي شي‌دخو ښيو مجلسونه تل‌تاو ده ساتي اودساتيري او تفر يح يوه په‌زړه پورې و سيله ده.لنډ کي هم کو م خاص او ټاکلي شاعر نه لري او دټو ل اولس ګډمال ګڼل کيږي .

څر نگه چي او لسي ادب دژ و ند هينداره او و اقعي ژ و ندي ادب دی نو ځکه دلنډ کيو په ر اټو ليدو سره د پکتيا دخلکو ځيني کلتوری خصوصيات ر اخو ندي کيږي چي البته داډو ل مو اد دخلکو د اجتماعي تار يخ او ټو لنيزو څيړ نو په برخه کي دلو مړي لاس باو ري او په‌زړه پو رې مو اد بللاې شو.

داچي په کو مه لنډۍ پسي دې کو مه لنډ کي و و يله شي‌په و ر وستيو بر خو کي به په ګو ته شي که څه هم په ځينو و ختو نو کي سندر غاړي په‌دې پسي نه ګر ځي چي‌دسره ر اغليو لنډيو او لنډ کي موضوع دې‌يوه‌ وي او هره لنډ کي چي خو لي ته‌و ر غله په لنډۍ پسي‌يي‌و ايي خو په ځينو و ختو نو کي دځينو پاڅو ته سندر غاړ و له‌خو ادې خبرې ز يات مر اعات کيږي چي په هره لنډۍ پسي مناسبه لنډ کي ر او ړې ماهم څه کړې دهچي دلنډ کيو ر اټو لی کړې نمو ني له ور

لنډیو سره راوړم .

**دلنډکیوخصوصیات اوصف بندی :**

لنډکی دپکتیا دخلکو له زړو نو راو تلی هنګاسی دي چی ددوي دو دونه رواجونه،تاریخی اعلام ،ټولنیز خاص سمیزات او غرنی روحیه پکی نغښتی دهچی په لاندې توګه بهدهرې برخی پهلنډکیو باندې په ځانګړې او جداجدا توګه خبرې وکړم .

**دلنډکیو تاریخی ارخ :**

دپښتو پهاولسی ادب کی کهسړې ژوره څیړنهوکړي هرومرو بهله داسی برخو سره مخامخ شیچی پههغو کی دپښتنو تاریخی و اقعات پهتفصیل سره بیان شوي او له یوې خولی نهبلیخولی ته کټمټ پههمغه شکل ترمونږ پوري رارسیدلیدي لکه پهلاندې لنډکیو کی چی وینو:

ګل لالی ییراوړ دشیری په کنډو ونه

* * *

ګل لالی یی راوړ لکهناوې پهډولونه

* * *

ګلالی سوورکټ مور ییجومات کیلټوینه

* * *

داچی ګل لالی څوکڅ څنګه سړي ؤ او څنګه وژل شو دهرې پوښتنی ځوابه ځانګړي او پرډ بحث غواړي، خودو مره باید وویلشیچی ګل لالی د«سلیخیلو» دقوم یو زړور تور یالی او ښایسته پښتون ځوان ؤ څهوخت چیپه یوهجنګ کی ووژل شو نو دقوم ټول خلك دده پهوژل کیدوخوراز یات خپه وو،نو په دې اساس دده پهویرنهکی یوه اولسی سندره جوړهشوهچی دګل لالی د

سندرې په‌نوم اوس هم په‌پکتیا او ټوله کورمه‌کې خاص شهرت لري او د باذوقه سندرغاړوله‌خواپه خورازړه وړونکې آوازونو ویل کیږي او داوریدونکو له‌خواپه‌ډیره مینه اوریدل کیږي :

غوغره یې لګه دبصرې په‌بازارونه

* * *

ړنګه یې‌بصره کړې چې خالي شي‌بازارونه

* * *

سوال زارې ونه‌کړې ایراني ولاړې دینه

* * *

محمد نذیره خیږه سرکې پوردې په میړونه

* * *

محمدنذیر دپښتنو نستان دتیرادغرنې سیمې اوسیدونکې اویو توریالي او باشهامته زلمی‌ؤ خود غریبۍ له‌لاسه خپل کران وطن نه‌جدااو په بصرې کې‌یې دخپلې غریبۍ دله منځوړلوله‌پاره کاروبار کاوه خوځه وخت چې‌دهغه ځای له‌یوانګریز افسرسره‌یې په‌کومه‌خبره لانجه پیښه شوه او دی خپل‌پښتني غیرت دې ته‌وهڅاوه چې‌باید دغه ظالم افسر ووژني. ده دغه کاروکړ خودظالم دښمن دپولیسو په منګولو کې ښکیل شو اودپانسۍ‌امر پرې صادر شوله دمسره هلته نورو پښتنو زلمیانو هم غریبۍ کوله‌کله‌چې دوی دغه‌وحشتنا که او خونړۍ صحنه ولیدله نو دده په‌ویر کې‌یې دغه‌پورتنۍ سندره وویله چې‌اوس‌هم په‌پکتیا، کورمه اوتیراکې‌دمحمدنذیر دفولکلوري سندرې په نامه شهرت لري .

خه‌قر اره شپه ده‌چی ختمک زیبو مو حینه

* * *

و رو ختمکه و رو حه‌صبحدم ڕدی ستڕی‌شو مه

* * *

زه به‌تاته و رو تلم و رو سته چیغی گدی‌دینه

* * *

مه تښته ختمکه ماکا رتوس راوړی دینه

* * *

جار ختمک جنګیړي زیبو شنه‌شی و خاند ینه

* * *

جار ختمک دشنو پانو بر غودی ړنګک به‌شینه

* * *

غره په‌بیخ یی پرې کړل دزیبو سپین ړوندونه

* * *

غره په سر یی‌پر یکړل د ختمک چنګک بر یتونه

یو ختمک زلمی‌خپل اصلی تاتو بی خخه دوزیرستان « تال » نو سی حای ته‌په سفر لاړو او هلته یی‌خپله غریبی کوله دهغه حای دیوه مخور لورچی زیبو نومیده دده سینی یی‌په‌زړه کی‌حای ونیو او دده هم له هغی سره مینه پیداشوه خو ددوی دغه پټه مینه ډیره زر رسوا شوه او ددوی‌دمینی او محبت خبرې هرحای ته‌ورسیدې که‌خه‌هم ختمک زلمی هغه کوله‌چی خپله دغه مینه پټه‌وساتی او حان بی‌خبره واچوې‌خو زیبو چی ډیره هوښیاره وه نه‌یی غوښتل ددوی پاکه پښتنه مینه رسوایي ته ورسیږي حکه یی‌نو ختمک دی ته اړ کړ چی‌بایدوطن پریږدي او کوم بل داسی حای ته‌لاړ شی‌چی په‌اراسی سره

و کولای شی‌خپل ګډژوندته دوام ورکړي نو یوه شپه یی داخبره غوته کړه چی پټ په پټه کلی پر یږدي خو چی دوی له کلی څخه روان شول دو سره زیاته لاری نه‌وه وهلی‌چی دکلی‌چیغه ورسیده . ګڼه‌خه هم دوی هغه کوله ځانونه کوم خوندي ځای ته‌ورسوي خو دزیبو پښی له‌حرکته لو یدلی‌وې او نور نو دتګ نه‌وه او ختمک هم له‌بی ایمانی څخه کارواخیست، زیبو یې خوشي کړه ترخو دکلی دچیغی په‌منګولو کی‌ښکیل شوه او هلته یی‌دغره په‌لمن لو سړی سپین مړو ندو نه تري غوڅ کړل اوځای پر ځای یی شهیده کړه خو ختمک هم‌له سرګه بچ نه‌شو او دغره په‌سر کی چیغه پسی‌ورسیدله‌او همغلته یی‌ځای پر ځای و او ژه چی‌ددوی ددغی پاکی مینی کیسه‌په‌پورته‌ډول چوره شوه‌او اوس هم دپکتیا په‌غرونو، کورمه، تیرا، وزیرو او ختکو کی انګازې کوي‌او دتکړه سندرغاړو له‌خوا په‌ډیرو خوږو او زړه وراښکونکو اوازونو زمزمه کیږي .

درستجو نی لښکر دی غوجیرو غاړې ته‌ځینه

* * *

پورې و رورې جنګ د ی سره ستړ یی کړل مینه

دتاریخ په‌اوږدو کی پښتنی قبایل له‌خارجی یرغلګرو سره په‌اخ‌وډب مشغول پاتی شوي او دوی دي ته‌اړ شوي‌دي‌چی دخپلی خاورې ددفاع په‌منظور له‌هری خوا راټول او دخارجی دښمن په‌مقابل کی یو قوي سنګر جوړ کړي او دوطن له‌دښمن سره جګړو ته دوام ورکړي چی کله کله داجګړې دپښتون دعام قتل سبب هم شوي دي او چی ددښمن پوځونو موقع مو ندلی‌ده‌نو له پښتنو نه‌یی کله منارونه جوړ کړي دي خو سره له‌دې هم ددوی وطن پرستی یی نه‌ده کمزورې کړې او دخپل ژوندتر و روستی سلګی‌پورې یی‌له‌وطن څخه دفاع کړې ده‌چی پورتنی لنډ کی‌ددوی‌دتاریخی‌جګړو یاد و نه کوي او د

پکتیا دمنګلو دتور یالی قام د(جانی‌خیلو) دپلرګنی دلښکرکشی‌یادترمو ړه پو رې رارسوي :

نه‌به‌تل درګی‌وي نه‌بی ډنډې ډکی و ینه

درګی دپکتیا ولایت دتنیبو دقام مرکز دی درګی که‌له‌دې‌خوا په‌زړه پو رې آب او هوالري نوله‌بلی خوادخارجی یرغلګرو (انګریزانو) لپاره‌د وطن پرستانو تولیدو مرکز هم بلل‌شوی‌دی او همیشه په‌درګی کی‌دپکتیا د تولو وطن پرستو قامونو لښکری سره را تولی شوي، او ددښمن له پاره یې دیوه محکم اوقوي سنګرشکل اختیار کړی ؤ درګی تردې و روستیو کلونو پورې روانی او به نه‌لرلې خلکو یې لوی لوی ډنډونه جوړ کړي و وچې یابې دباران له‌اوبو څخه ډکول او یاداچې له‌کوم بل ځای نه‌یې‌په‌سوال او به‌و رته راوستلی او دغه ډنډونه یې‌پرې ډکول کله داسی وخت هم‌راغلی دی چې ځوانان‌له دښمن‌سره‌په جګړه‌بوخت‌پاتی شوي‌دي‌او د ډنډونو اوبه‌مخ په خلا صید وو رغلی دي او داو یره پیداشو ې ده‌چې که داحالت دوام پیدا کړي نوخدای«ج» دې نه‌کړي درګی له خطر و نوسره مخا مخ نه‌شی چې پو رتنی لنډکی هم د پو رتنیو شرایطو په‌رڼاکی و یل شوې ده .

که‌څه‌هم ځینی لنډکی عشقی رنګ لري‌خو تاریخی ارزښت‌یې‌په‌دې کی دی چې دیوه وطن پرست ځوان زړو رتیا، فداکاري او له‌وطن‌سره مینه‌پکی نغښتی ده او دادغو تاریخی جګړو یاد تا زه کوي چې پښتنو دخپل ګران هیواد دساتنې په‌لیارکی‌له‌بهر نیویرغلګرانواو یاله (پاکستانی واکدارانو) سره‌کړي او کوي یې. هغه وخت چې‌په‌وطن‌مین‌ځوان له‌دښمن سره دجګړې په ډګرکی‌وژل کیږي نوددې له‌پاره چې‌دنو روځوانانو روحیات کمزوري نه‌شی او دوطن مینه یې‌په‌زړو نوکی لاپیاوړي شی نو دیوې محبوبی له‌خولی

هغوی ته‌دوطن مینه راو ړاندي کوي او دیوه ځوان تو ره‌او میړ انه‌داسی‌ستاییی:
مه‌ژاړه ننداني وورکی تل په تورو سر ینه.

* *

جار سره غوجیره په‌وینو رنګ لکه لالو نه

داسی دیر پیښ‌شوي‌دي چی‌دښمنان دپښتنو سیمی ته رانغو تی او له‌دوی سره یی ' ددوی دکو رونو شاو خوا کی جګړو ته دوام ورکړی دی نو کله‌چی پښتانه ځوانان له دښمن سره دخپلو کورونو په چاپیر یال کی په جګړو بوخت‌دي پښتنی پیغلی دپښتنو ځوانانو دتوري او شهامت خارنه کوي‌او د بامو نو سر ته ختلی دي خوشه وخت چی دجګړې په ډګر کی یو پښتنو ن ځوان وژل کیږي نودده دغه شهامت داسی ترسیموي :

* * * *

تور ببری نسکو ر دی‌زه په‌بام و لاړه یمه

د لنډکیو اجتماعی اړخ :

په‌بشري ټولنو کی ځینی داسی‌بداو ناوړه عملونه وي چی دټولنی په‌زیان تماميږي خودنظر خاوندان دغو بدو اعمالو ته دکرکی په سترګه ګوري او غندي یی . پښتنی ټولنه‌هم له‌داسی ناوړو عملونو څخه‌خالی نه‌ده‌خو پوهو کسانو او دنظر خاوندانو همیشه دغه‌بداو ناوړه‌عملونه غندلی‌او غندي یی.
جواري کول‌چی دټولنیز و فساد و نو په‌لومړي قطار کی‌ځای لري پښتانه‌یی دکرکی‌په‌سترګه ګوري او دانه شی منلی چی‌یو دوست او اشنادې یی‌په‌ناوړه عمل روږدی شی ددوی‌له دې بدو عملو نو سره دعملی مبارزې‌په‌څنګ‌یی کی اولسی ادبیاتو کی هم دهغوی غندنی ته‌ځای ورکړی او دغه ناوړه عملو نه یی داسی ترسیم کړي دي چی د ټولنی ټول و ګړي یی د خیمو عواقبو ته‌متوجه شی‌چی دهمدې اساس په‌نظر کی نیولوسره دیوې مجبو بی‌له‌خولی‌یو ځوان له‌جواري کولو څخه په‌دې تر تیب منع کوي .:

تـــه کـــنـــه جواري کـــړي سابـــه بايـــه (۱) کـــړي مينـــــــه

پښتانه لکه ځنګه چې له خپل اصلي پلر ګني تاټو بي سره مينه لري په همدې

تو ګه دخپلو نورو پښتنو و رو نو له تاټو بي او د دوی له ژوند سره د زړه له

کو سی مينه لري کله چې په کومه پښتنه سيمه باندې اسماني آفت او يادخارجي

يرغلګرو تاړاک راغلی دی د دوی که نور څه له لاسه نه دي شوي نو په مصيبت

کې خو يې ځانو نه هرو مرو ر سره شريك دي او خپل ژوند خپګان يې ور سره

ښکاره کړی دی لکه په لاندې لنډ کی چې دتير اپه غرنی او ښکلی سيمه باندې

دړلی داو ريدو له، کبله خپل خپګان او ژوره انديښنه داسې څرګند وي:

ټيټه يې ړلی کړه په تير ايی ورو ينه

* * *

ستيا په غو نډی (۲) جنګ دی مير نی و وړ کی به مر ينه

او س به را شو دي خبري ته چې عشق او مينه په پښتنی ټو لنه کې په کومه

ستر ګه کتل کيږي او يو مين له خپلی معشو قی سره تر کو سو شر ايطو لاندې

مينه پالی چاچې پښتنی ټو لنه ليدلی وي او ددوی دژ و ند له ټولو اړخونو سره

بلدوي دابه هرو مرو ورته جو ته شوې وي چې دلته مينه پا لل او معا شقه

کو ل لوی جرم بلل کيږي . په تير بيا دښځو طبقه خوله دې لوی نعمت څخه

بالکل محرو مه ده هيڅ يوه پښتنه پيغله نه شي کولای چې له کوم ز لمی سره

---

۱) بايه ، بايلل يعنی بايه دبايللو مخفف شکل دی .

۲) ستيا او غو نډی دپکتيا و لايت دځمکنيو د ولسو الی دسر حدي سيمی دوه

کلی دي چو ن دغه دوه کلی دډيو رنډ دنامنلی فرضی کر ښی په سر پر اته دي

نو چې کله دد ې کليو ځوانان په جګړ و بوخت وي د نورو سيمو خلك خپل تأثر ات

په پو رتنی لنډ کی کی ځايوي .

په خرګنده توګه سینه و پالي او یاد خپلې پاکې پښتنۍ مینې څرګند و نه وکړي چې په دې اساس هر عاشق او هره معشوقه له یو عالم سایو سیو سره لاس او ګریوان وي ، خو عاشق په دې برخه کې زیات ربړ و نه ځکه ګالي چې هره ګړۍ له خطر و نو سره مخامخ وي، ددې دپاره چې دیوه دردمن عاشق روحي تسکین شوی وي نو یوه وفاداره محبوبه دده د روحیاتو ژوندي ساتلو په منظور هغه ته ته داسې ډاډ ګیرنه ورکوي :

توري سترګې سره لاسونه تاته ناسته یمه

* * *

جار ځان سی په ویره کړې چې تابه ویرومه

* * *

ما خو دې خدای نه لري چې ته نه وې مینه

* * *

پریږده دنیا غمونه زه دې ډیره یمه

له دوی سره د مینې په پاللو کې داویره هم ملګرې وي چې څوک یې په راز خبر نه شي نو هر عاشق او هره معشوقه مجبوردي چې په داسې ډول خپله مینه سره و پالي چې هم څوک پرې خبر نه شي او هم دخپلې پاکې مینې تنده سره ساته کړي .د دې اساس له مخې کله چې عاشق خپلې ګرانې معشوقې ته ورغلی دی نو ددوی درازاونیاز په شېبو کې معشوقه ددې له ویرې چې سبا نه شي او څوک یې په راز خبر نه شي خپل مین ډیر ته تلو له پاره داسې تشویقوي :

جار په دیدن ډیره بیړه کړه سبا به شینه

جار مینه جمهٔ رنگوه سبابه شینه

*   *   *

پر یږده لاس مې پر یږ ده ساته سورسو رې و هینه

*   *   *

په کومه تولنه کې چې له‌مادیاتو سره مینه زیاته وي هلته اجتماعي محرومیتونه خوراز یات وي، دلته سو ږو ینو چې د ژوند دملګري په انتخاب کې یو لوړی هم ازادي او دراېي دخرګندو لوحق نه‌لري داځکه چې‌له‌یو ې خوا (ولور) دیوه‌ملا ساتوونکې باوړ په بنه حاکمیت لري او له‌بلې خوا د ژوند دملګري په‌انتخاب کې دطرفینو راېې ته‌اهمیت نه‌ورکول کیږي چې په لاندې لنډۍ کې داناوړه حالت ډیر ښه خرګند شو یدی :

مه‌راپسې ژاړه وورکیه نه‌سې درکوینه

*   *   *

نوله‌د اسې قیودونه په‌یوه ډکه تولنه کې چې خوک ژوند کول غواړي دهغه ژوندپه ژوندنه‌وي حساب ځکه خو نو یو دردمن ځوان له‌خپل ژوند څخه د اسې بیزاري څرګندوي :

جار کمکي دي‌سړ و ای چې‌سې‌نه‌لیدی غمونه

دتولنیز ژوند په داسې شرایطو کې چې عاشق‌ناامیده شي او پر دې باور شي‌چې‌له‌خپلې محبو باسره یې‌وصال ناممکن دی او نه‌شي کولای چې په هر مناسب وخت کې یې په‌دیدن خواسړه کړي نو محبو ریږي‌چې‌له‌لوی خدای(ج) نه دزړه صبر وغواړي او دوروستي‌ځل له‌پاره دلوی خدای (ج)په‌دربار کې داسې سوال کوي :

---

۱)جمه: مجلس

صبر دزړګی راکړی چی‌نه‌دی یادومه

**د لنډکیو عشقی اړخ :**

د لنډکیو په دی برخه‌کی یادعاشق له‌خوا معشوقی ته‌او یادمعشوقی له خو اعاشق‌ته‌دمینی او محبت نه‌ډك رمز و نه‌پر اته‌دی. لو سړی به‌په‌هغو لنډکیو و غږ یږ و چی دمعشوقی له‌خوا دعاشق‌ستاینه پکی شوی‌ده .

کله‌چی‌یوه معشوقه له‌خپل مین لالی سره‌خپل‌ځان پر تله کوی‌او دمقایسی په‌ډ ګرکی و رسره سیالی کول غواړی نو دغه مطلب په‌داسی ادبی الفاظو کی رانغاړی :

پو ری سی لالی راپوری زه ولاړه یمه

* * *

یا رسی تو ر ببری دی زه ګیډه ی د ګلو یمه

* * *

جار که ته‌نمبات یی(۱) زه‌تری شکره یمه

* * *

په پښتنی ټولنه کی ددو و مینانو وصال او یو ځای کید ل ځکه مشکل کاردی، چی د یوطرف رضایت هم‌په‌نظر کی نه نیول کیږی‌خو که چیری داسی پیښه و اقع شی‌چی دوه‌مینان سره‌یو ځای د ګډژوند په‌پیل بر یالی شی نو دغه پیښه دلوی خدای (ج) له خاصو مهر بانیو څخه شمیری دا ځکه چی پر ته‌دخدای(ج) له مهر بانی نه ددوی پر مخ نوری ټولی لیاری تړ لی وی،نو دو اده په‌لو مړی شپه کله چی دغه دوه هجر ان وهلی مینان دلو مړی ځل له پاره‌یو ځای شی مخبو با خپل لیونی مین ته‌دوصال مبارکی په‌دی‌ترتیب‌ورکوی:

---

(۱) نمبات : نبات .

تو ری سترگی سره لاسونه خدای د رکړی یمه

* * *

تینگه غیږه راکړه ړنگه بنگه د رغلمه

* * *

ښځ په سخ سی ښکل کړه چی بیانه کړی ارمانونه

* * *

سپینه خوله سی ستاده دبل خاوری شه مینه

* * *

جار خوله رانژدی کړه مالونگ ژوولی دینه

* * *

مخکی وویل شول چی د دوو مینانو ددیدن شرایط دومره تنگ دی چی حتی کله کله عاشق له مکر رو تهدیدونو سره مخامخ کیږی نوچی یوه خوا خواخوږی محبوبادخپل لیونی مین داحالت وینی په داسی ادبی الفاظو کی دخپگان پوښتنه ترینه کوی :

سری سترگی ولاړیی چاښکنلی (۱) یی مینه

* * *

راشه چی خوله د رکړم سرو رگرځی مینه

* * *

جارغمو ته اوروروا چوه چی وسیز ینه

* * *

ددوو مینانو بیلتون ددوی په زخمونو دمالگی د وړولوشال لری. کله چی یو مین له خپلی محبوبا ځخه بیلیږی او دیوه لیری سفر په نیت رخصت تری

---

(۱) ښکنلی — ښکنځلی .

غوا ړې نو محبو بايي په يوځل د يدن کولو اکتفاء کوی او له خپل گران مين نه داسی غوښتنه کوی :

ته چي پناه کيږی مخ راو اړوه مينه

* * *

خوچي دغه غوښتنه يې و نه منل شی نو دهغه په ديدن باندی دځان مړ ولو په هيله په ډيره عاجزی خپل عرض داسی وړاندی کوی :

مخ چي راړوی (٢) پښه ولی نه نيسی مينه

* * *

کله چي مسافر اشنايي له ډيری مودی سفر څخه و روسته بيا هم کور ته دراتگ خيال نه لری نو که محبو بايي له راتگ څخه نااميده هم شی خو بيا هم يو ازی په ياد او تش په نامه ديدن ځان خوشالوی او خپل پاتی عمر دده ياد کی تيروی ،لکه په لاندی لنډکی کی چي ليدل کيږی :

جار ستاد ديدن په تمه شپی سبا کومه

* * *

خوچي په هجران کی يې دستنی غوندی نری شی نو نا ځاپه يې له خولی داسی سوی تېپی راوزی:

جار شومره دې ځنډ کړ و په پر ديو وطنو نه

* * *

په عشق کی ناز او کرشمی ځانگړی کيف او خوند لری کله چي دوه مينان سره يو ځای کيږی نو محبو با دخپل مين دځو رولو له پاره رنگارنگ نازونه کوی لکه په لاندی لنډکيو کی چي ليدل کيږی:

---

(٢) راړوی — راا ړوی .

مه‌را و ړساړه لاسو نه خوب‌سی زنگو ینه

* * *

مه‌راو ړه ساړه لاسو نه ډیر ساړه سی شینه
سو رسالو سی‌و روو رو جگوه له‌خو به‌یمه

* * *

ټینگه خو بیو لی یساره تا بیداره کړ مه

* * *

خوچی د دو و مینانو مینه درسو ایی حدته و رسیږی او د هرچا په خو لو کی ددوی دعشق او مینی خبری تو دی شی نو محبو باد خلکو دا شتباهاتو د لیری کو لو له‌پاره خپل ځان پاك ثابتو ل غو اړی او داسی و ایی:

زه مینه‌نه یم چادروغ و یلی دینه

* * *

او س به په‌هغو لنډ کیو و غږیږو چی د عاشق له‌خوا معشو قی‌ته دمینی‌او محبت نه‌ډك رمزو نه پکی پراته دی . کله‌چی محبو با په‌ډیر نازاو کرشمو روانه‌وی او له عاشق سره داهیله وی‌چی که دیدن څخه‌یی اعظمی استفاده وکړی نو په‌دار نگه‌ادبی اندازکی داسی غوښتنه ترینه کوی:

خیال بازارلنډی دی جلکی و رو ږده قد مو نه

کو مه‌حیاچی دپښتنی پیغلو په‌پښتنی سترگوکی خدای(ج) پیدا کړی ده‌د دی جرأئت کله کو لای شی‌چی له‌مینی نه‌په ډك نظر چاته و زوگو ری خو د یوه‌لیونی‌مین‌لیونی زړه‌هم‌طاقت‌نه‌شی کو لای اودهغی‌دیو نظر لیدلو هیله‌و رسره وی. په‌لاندی لنډ کیو کی یو مین ځو ان له‌خپلی محبو با څخه په ځومره ادبی

الفاظو کی د یو نظر لیدلو او یوی خو لی خند ا غو ښتنه کوی :

سری ستر گی را جگی کړه د مینی یار دی یمه

*  *

سری ستر گی راو اړوه چی لاړ سی شی غمو نه

سری ستر گی راجگی کړه لوگی شو ل وطنو نه

*  *

خدای(ج) ته‌و کسی‌و خانده چی‌لاړ سی‌شی‌غمونه

*  *

جار دیدن ته‌تس‌ور کړه چی‌لاړ سی شی‌غمو نه

*  *

بیاهم چی‌محبو با یی اعتنانه‌کوی نو خپل‌ځان داسی‌و ر پیژنی:

وخانده په‌سینه‌پخو انی اشنادی‌یمه

خوچی‌دی‌باو ری‌شی‌چی‌محبو بایی مینی ښکاره کو لو ته‌تیار ه‌ده‌نو غیږ ی‌ته‌دراـ نژدی کیدوپه‌فکر کی‌یی‌لو یږی‌او په‌ډیر جرائت‌ورځنی‌غواړ ی:

جگ کړه سر و ندو نه جلکی غیږی ته‌در ځمه

*  *

سو رسالو تر ملا کړه جلکی غیږی ته‌در ځمه

*  *

رنگه بنگه راشه پـر مـا واچـوه لاسو نـه

*  *

سپین سر و ند دی کیږ ده جلکی سر په‌لگو مه

مگر چی محبوبایی ددغسی غو ښتنی په‌مقابل کی قهر جنه معلومه‌شی نود هغی‌دقهردله‌منځه‌وړلو له‌پاره یی‌دښایست‌صفت کوی‌او داسی‌یی دلاسه‌کوی :

ته‌په ډول جوړه‌یی که زه د رسین شومه

*

کله‌خولگی راکړی کله‌وکړی جنجالونه

*

بیاجلکی و هلی په لنډی زنه خالونه

*

سری دې اوړ په‌خولی ځونډي دی‌کلی ړنگوینه

* *

دعاشق اومعشوقی ترمنځ د دیدن او وصال په لیاره کی‌خنډو نه‌پیدا کول اوددوی‌په‌زخمو نوسالگی دوړول‌دمحبوبادسو رله‌خوازیات‌پیښیږی‌او د جلکی موږ همیشه دخپلی لور داعمالو او کړ وړو خارنه‌کوی داځکه چی له‌هغی سره د او یره وي چی چیرې نه د لور په پاکه پښتنی‌لمن‌یی د تومت تور داغ پورې شی، نوځکه خویی‌سین ځوان دې‌ته‌اړ کیږي‌چی دهغی له‌پاره‌د مرگ ښیرا وکړي لکه‌په لاندې لنډه کی‌کی‌چی‌لیدل کیږي :

جارسوریی گکړه کړې چی‌سپی یی‌کړ بو ینه

* *

یو سین ځوان چی ددیدن تږولی‌لارې په ځان تړلی و و ینی او دغه‌چانس و رته‌نه پیدا کیږي چی‌دخپلی محبوبا په‌دیدن باندې خپل هجران و هلی‌زړه سوړ کړي نوله مینی او عشق څخه بیزاري څرگندوي او مینه داسی‌ردوي :

مینه مینه نشته ته‌ول غمونه دي مینه .

## پښتنی ګودر په پښتو لنډ کیو کی :

ګودر په پښتو ادب کی یو خاص مقام لري ، ګودر د پښتنو پیغلو د ټولیدو مرکز ، ګودر دد وومینا نو د دیدن یوازینی مقام او ګودر دارمــانجنو زړونو د ارمانونو د رژید و یوازینی ځای دی چی په مختلفوا ولسی ادبیاتو کی په ډیر احترام یادشوی او ستایل شوی دی چی البته پښتو لنډ کی هم په دې برخه کی له نورو او لسی ادبیاتو څخه بیر ته نه دي پاتی او د پښتو داولسی ادب دغه ډول هم د ګودر په ستایلو پکی ستایل شوی دی :

کله چی مجبوبا د ګودر پــه لوررو انــه وي او خپل مین ددیــدن په پلمه راوتلی و وینی نو ګودر ته د خپل تګ علت یوازې دده له پاره بولی او پرده باندې خپل احسان په دې ترتیب باروي :

جار کړه وړه ګودر ته ستاله پاره ځمه

* *

تورې ستر ګی سره لاسو نه بر ګودر ته ځمه

* *

او خپل زعفرانی اوزیړ زیبښلی رنګ له زیړ ما ږیګر سره داسی تشبیه کوي :

جار زیړ ما ز یګر دی زیړه زه و لاړه یمه

* *

پر یړ ده چی ښو ر یړم لیونی په ګودر ونه

* *

مین ته له بل هر وخت نه ماز یګر ښکلی بریښی، داځکه چی په ماز یګر کی د محبو با دلیدلو موقع په لاس و رځی ،ځکه نو د ماز یګر صفت داسی کوي :

ښکلی ماز یګر د ی جونه بیا ګودر ته ځینه

جا روخت ما زیگر دی جونه برگودرته ځینه

* *

او چی خپله‌کرانه محبوبا و وینی چی‌کودرته‌روانه ده نوکودرته‌تګ یی‌دزړونو دزخمی کولو علت بولی او دغه حالت داسی بیانوي :

لاړله‌کودرته‌جلی زړونه پرې‌کوینه

*

پښتانه که‌له‌یوې خوا اکثره کوچی ژوند لري نولـه‌بلی‌خـوا غیر کوچی مالداران پښتانه هم خپلی رمی دځړ ځایو نو په منظور غرنیو سیمو او ښو ورشوګانو ته‌بیایی چی ددوی په‌دې نیمه کوچی ژوندکی‌یوخاص کیفیت او خوند پروت دی ددوي دی ډول کوچ کولو ته بانډې وایی او هغه ځوک بختور بولی چی‌په بانډه بانډې روان وي او غرنیو سیموته کوچ کوي.نو بانډې هم دپښتو په‌اولسی ادب کی ځانګړی خاص مقام‌لري چی البته دپسرلی له‌ښکلی او رنګین موسم څخه بیادمنې دموسم تر پیل کیدو پورې مالداران خپلی رمی دځړ داسی ورشوګانو ته‌بیایی چی مال یی خوشال‌او په کیده سوړوي چی دادی اوس به دنمونی په توګه هغه لنډکی وړاندې‌شی چی دبانډو یادونه پکی شوې ده لکه په‌لاندې ډول چی لیدل کیږي :

جاردره‌ګی خالی دی جونه غرونه تللی دینه

* *

یاجلکی روانه ده سخیري (۱) بانډو ته ځینه

---

۱) دسخیري کلمه‌دپکتیا په‌و لایت کی ډیره مستعمله‌ده خصوصا په اولسی ادب کی زیاته استعمالیږي او دغه دسیوري له کلمی څخه‌جوړه شوې ده.چی اوس هر ساړه ځای ته‌دوي سخیري وایی.

جار باندې شو و يې غرو ته تللي دي مينه

*

دلنه کيو دموضوع ترسر ليک لاندي دې تکې ته ګوته نيول شوې چې په هره لنډۍ پسې به دهغې دارتباط په لحاظ و رلنډکي وراندې شي دادی دهمدې وعدې دسرته رسولو په مقصد پهلاندې ډول لو سرې خپله وعده سرته رسوم او بيابه دراتلولو کې يو لنډکيو تولی نمونې وړاندې شي :

زما دې خه نصيب کړ خدا يه          چې لاس په زيږو ګلو بدماغزې پرې ځينه
غو نډه منډه زه يم يارسي بله لتو ينه

سترګې دې بيا په ژړاسرې دي          تاته ظالمې مورکې خه و يلي د ينه
وشو نډو دې جارشم نن دې ډير ژړلي دينه

و وړکی برو ښر کال ژوندي وو          سرې و رکړي تورو خاو روته ځنګونه
حق دی سرګکې حق دي ستاځوانی مې ژړو ينه

په جنازه سی بيره وکړه          ناوخته کيږي نـا آشنا وطن تـه ځمه
ته که ژارې ژاره مابه نه سومې مينه

چې تورې کړې برې به سوسی          که برې نه وې ځوانان تل په تورو مرينه
جارپه ننګ مينه و وړکيه غيږي ته درځمه

ما زيګر چيرې وې لوی مه شي          خورې ورې زلفي په بام ولاړه و مه
تيتيه يي بدلی کړه مازيګريې و رو ينه

جدابې راغله جدا کيږو          جداجدا به سره ځو و يشتلي زړونه
سرې سترګي راپورته کړه چې وکړو ديدنونه

که غم لغمه شرميدلی          پهمابه نه راتلل جوړه جوړه غمونه
ته په خندا لاړې زه دې هيره کړم مينه

وعده دې لنډه و ه او ږده شوه میا دشتي ې تیرې کړې کلونه دې شمارمه

جارغمونه تل وي ښادي کله کله وینه

داته چې ځې نه پاتې کیږي د زیړو ګلو باغ پسر چا سپارې مینه

جار مینه لاس راکړه جوړه درسره ځمه

مینه له مینې پیدا کیږي پسه مینه مینه دې کتم مینه دې کړمه

مینه دې سوراورد ي عالمونه سوز وینه

اوس به دلند کیو څو نورې نمونې پرته له دې خخه چې لنډۍ و رسره راوړل شي
و راندې شي :

جار اوربه لمن کې ګرځوې په و دې سومه

---

ډیر ظلمونه مه کړه پخوانی آشنادې یمه

---

رنګه یې ځوانی ده مزه ماته راکوینه

---

خوله دزروجام ده اوبه خوند پکې کوینه

---

جونه په باغ ګډې شوې تالایې کړل ګلونه

---

جار خدای دې رنځور کړه چې په لاس دې و نیسمه

---

مه سرې و وړ کیه مه سرې که نصیب دې پاتې وینه

---

پریږده د نیاپر یږده چې ماپرې نږدې مینه

---

سپین چار ګل دی جارشم لکه نبکه ایښې وینه

---

جار دیدن غـونـډ اری کړه پـه ولمی مینه

تهوغه په بازارځي لګوي ګوتوسرونه

تهوغه تهوغه ګرځي لګوي ګوتوسرونه

سورچار ګل دي سات شه لکه نښکه ایښي وینه

رب دي لیوني کړه چي په غرولاړ شي مینه

ګل چي شوکوي مادر خبره کړه مینه

وژارم که وخاندم بیلتون راغی مینه

د یره مینه مه کړه لیوني به شي مینه

تـوره غنم رنګه جلکۍ ګلي ړنګو یـنه

جار بی غمه خدای دي بنده تل په غم کی وینه

برکنډو کی سپی دی په چوله را شه مینه

ذا د نیا فـا نی ده مسلمانـه دی صورتونـه

یـاره لیوني یی که چابنګ درکړي دینه

نه به تل ژوندۍ یم نه به وخاندم په مینه

خوشي سرګی ورک کړی خویندی ورونه بیلوینه

ډیر ارسان ارسان دی چی سرګی نه وای مینه

سپین سخ راخرګند کړه په صفت راغلی یمه

---

جار چادې صفت را ته کاوه راغلی یمه

---

جار سینه څه دې را تـه وې ولاړه یمه

---

پریږده وطن پریږده چې ساپرې نږدې مینه

---

جار خدای (ج) دې لیلا مه کړه چې زه دې راولمه

---

ډیر ډیر سی یاد یږي د پکتیا شنه ځنګلونه

---

سوز سالو سی راکړه سور سی ورکه لټوینه

---

جار تل خوبه نه وي د کبرو شملو ډ ولونه

---

سپین سخ راخرګند کړه چې دې وو ینم خالونه

---

پاس په بام ولاړې لیلا وخانده پـه سینه

---

تـه که نـه راځې سا خودرو بوله مینه

---

کله سی خوږلی کـاغذي شونډ و سرو نـه

---

واښکلی لیلا پـه تـاسی زړه مینه راځینه

---

پاس پـه بـام ولاړې یه اوربل وهی لاسونه

---

سپینه خولګی راکړه سبا بل وطن ته ځمه

کله مې هیریږي دا وړ د وښو سرونه

---

سر و ښکر یو شرنګ دی خوبیولی و یښوینه

---

شنه خالونه خوندکړي چې خاور په زړنه وینه

---

باغ کې د بلبلو آوازونه خوږوند کوینه

---

ستا لیونی مینه مې خوب کې څورو ینه

---

ته چې نیمګی مخ پټوې رنځور سه شمه

---

راغې پسرلی جلکی د ګلو باغ ته ځینه

---

یو وار په خندا شه مخ راواړوه مینه

---

زه لکه بلبل په فریا د وښې تیرومه

---

سره لاسونه جګ کړه چې ښکر یو شرنګ دې شینه
ړنګه ښکه تاسو کړه د رتلم و غوږ خیدمه
ته په ښنګ راواوړه چې ښګریو شرنګ دې شینه
لاس په مینه راکړه سبا بل وطن ته ځمه

* * *

تینګه غیږه راکړه سبا بل وطن ته ځمه
ته له خیره راشې زه له مینې مرم مینه
ته چې په خندا شې سپینې واورې تلې شینه

ماخودي خدای نه لري چې تانه یادومه
خوشی مرګی شته دی غرمه ګرځه مینه
رنګه بنګه راشه غیږه بیارا کړه مینه

* * *

بیا به ګله راشی که عمري لاړې مینه
تیتی شوې بلبلی دچند رو په سرونه
سور سالوترملا کړه جلکی غیږې ته درځمه

* * *

خدای دې لیونی کړه چې په غرولاړ شې مینه
جار مرګی ظالم دی پندې جمی رنګوینه
زه مینه نه یم چا به توکی کړې وینه

* * *

نه به تل سپیر کی وي نه بی شنه ځوغلی وینه
جار رنځوره یاره په دیدن دې روغومه
جار د للمی ګله په دیدن دې پسنومه

* * *

جار میراث شی دیره می ښکنی لاړه به شمه
مینه لیونی ده که یې زه لیونی کړمه
ځت په مخ وو وړي ګوړ ګوتو ځنوسرونه

* * *

جار جلکی وهلی په لندی زنه خالونه
ما په سیل پریږده ننداري راغلی دینه

جار فقیره مه غواړه بی و خته خیرانونه

* * *

پاس په هوراشه کوزې لیارې بندې دینه

ټکنده غرمه ده عاشقان له تندې مرینه

جار بی یاره خوب نه شی که ماته ئې راځینه

* * *

جار دیدن ته کله کله ارخه چی نیاز دې وړمه

* * *

لیوه می درجګه کړه د کاله وچه یمه

نه که دنیاړ نګه شی رضایه دخدای و یمه

* * *

وژاړم که و خاندم بی یاره ناسته یمه

ژوندون دې ورکشی زه جنجاله ناسته یمه

یو وار په خندا مخې ته بیا راشه مینه .

* * *

تل د خدای خدایی ده غره مه اوسه مینه

جار سرکیه خوار شې لکه زه دې خواره کړمه

جار که ته شهید بې زه بندې روانه یمه

* * *

غنې دې راتیتې کړه چې ګل درو تلومه

**يادونه:** داچې ځينې لنډ کې په (جار) او (نه) سره پيل کيږي او ځينې نورې يې پرته له دې چې د (جار، ونه) کلمه يې په سر کې راشي پيل کيږي د «جار» کلمه خو دلنډ کيو په سر کې راځي چې دلنډ کيو د قانون سره سم (۱۳) سيلابونه پوره شي او د «جار» کلمه دغږنيو سندرواو داتڼ د ميدان په ترڅ کې ور سره راو پل کيږي، که ځانګړې توګه يې غوک له ځانه سره زمزمه کوي نو علته يې اد (جار) کلمې ته دو سره ډير ضرورت نه ليدل کيږي. باتې دې نه وي چې دغه لنډ کي ساده يکتياد اولسي خلکو په سرسته راټولې کړي او زياتره لنډ کي بې علته په يکتيا کې له ياذو قصندر غاړو غخه ليکلې دي او زماله خوا کوم جزوي تصرف هم نه دی پکې شوی.



هر نکه‌چی دپکتیا دتولو قامونو اوتولو خورووړو پرتو سیمو اولسي ادبیه تقریباً یو شی دی، یعنی کومی‌سندری او بیتونه چی په‌یوه‌قام اوخیل کی ویل کیږی هغه سندری دپکتیا په‌تولوسیمو کی تقریباً په‌عین‌شکل اوطرز سره لیدل کیږي، ددغو سندرو او بیتونو کوم خاص شاعر او ویونکی نه‌دی، معلوم بلکی دتولو پکتیاوالو ګډ او شریك مال بلل کیږی .

البته په‌دغو اولسي سندرو او ادبیاتو کی‌داسی بیتونه اوسندری هم‌شته چی ددغی‌سیمی داولسی شاعرانو له‌خوا ویل شوی اوځینی بیتونه بی‌اولسي شاعرانو ته‌منسوب دي مګر ځینی نور ډیر زیات داسی بیتونه اوسرو کسی دی‌چی مخصوص او مشخص شاعر نه‌لری، بلکه دتولو خلکو مشترك میرآث‌دي .

هغه‌اولسی سندری او بیتونه چی په‌پورته ډول ورته ګوته ونیول شوه شو برخی لری‌چی‌په‌لاندي ډول به هره برخه په‌ځانګړی توګه او جداجدا وړاندی شی‌چی دهری هری‌برخی بیتونه اوسندری ځانته ځای، ځانله وخت‌او دو یلو مشخص طرز لری ، او دادی اوس به‌خپل اصلی تکی ته‌راشو چی هغه دغو بیتونو اوسرو ګو وړاندی کول دی :

## دتکک په حال کی :

دادول بیتونه دپکتیا پهخلکو کیخورا زیات دی او دتکک په وخت کی ویل کیږی یعنی کلهچی (ورا) دناوی دکور په لورحرکت وکړی او یا د ناوی دراویستلو پهوخت کی کلهچی د زوم دکور په لور روان شی نو له دغه دول بیتونهد (دول) او دتوپکو ددزو پهبدرگه ویل کیږی چیپه عمومی دول ددغسی بیتونو لومړی مسری اوږده او دویمه مسری یې لنډه ویچی دلومړی مسری دسیلابونو شمیرله(۱۳) نهنیولی تر (۱۵) سیلابونو پوری اود دویمی مسری دسیلابونو شمیرشپږ او یا اووه وي ،ذویلو طرزیی لهعادی سرو کو سره خاص توپیرلری چی په لاندی دول به دهری برخی بیتونه پهترتیب سرهوړاندی شی .

۱ــ هغه بیتونه چی لومړی مسری یی دیارلس او دویمه مسری یی اووه سیلایهوي :

| | |
|---|---|
| جلکیخپه ده نن سبایی ودوینه | اوربل یی رنگوینه |
| چید دیدن نصیب یی نهوی | اوربـل یی رنگوینه |
| پهیوه کوخه کی سره وړاندیوروسته شینه | اوربل یی رنگوینه |
| جلکی خپهده ننسبایی و دوینه | اوربل یی رنگوینه |

* * *

داخماری سترگونه لری کرهپیچکی ویءویء * جلکی نازکي

* * *

زهبدی جانان دپاره جوړ کرم کله کله * زماتوره اوربله

